۱۳۴۰
۱۱-۱۲

1-2/1962




په احمدشاهي واټ کې د کندهار د مخابراتو د مدیریت د چینل سیستم او د اتومات تیلفون نوې ودانۍ

## ښاغلی محمد ابراهیم [خواخوږی]

## پسرلی



ښاغلی خواخوږی

یاره پسرلی دی هره خوا ښکلي ګلونه دي
همه غرشین ښکاري د قدرت ښه نګارونه دي
جوړې باراني دي د اوریځې پیغامونه دي
چې پېغلې خاندي خوشالي ارانځونه دي

مستا د وصل جام ته انتظار یم انتظار ساقي
مړ شومه له تندې نشته ما اره قرار ساقي

راسه د زړګي غوښې به سـا اره کباب کړمه
جوړه به د رګو څخه تارونه د رباب کړمه
مستا د جام د یاره به د زړه وینه شراب کړمه
مستا د عشق په سوز به یاران مست و خراب کړمه

مستا د وصل جام ته انتظار یم انتظار ساقي
مړ شومه له تندې نشته ما اره قرار ساقي

څوک به د دې ښه وي چې په مینه یارانه وکړو
ناز وکړو نیاز وکړو کارونه مستانه وکړو
ناست د سینه د برژه مستي سپوږمۍ ته پیمانه وکړو
لاس تر غاړه وګرځو خبرې رندانه وکړو

مستا د وصل جام ته انتظار یم انتظار ساقي
مړ شومه له تندې نشته ما اره قرار ساقي

زه به یمه، ته به یې خوښي به وي، مستي به وي، نشه به وي
ناز به وي، نیاز به وي، سرود به وي، نغمه به وي

« پاته د پشتی په دریم مخکی »




## ددې کښې مضامین



## معذرت

د ځینو مشکلاتو له کبله مو ونه کړای شوای چې به دلو او حوت کې جلاجلا دا مجله خپره کړو نو ځکه دا ګڼه د دواړو میاشتو دپاره ده هیله کوو چې ښاغلي مشترکین او لوستونکي زموږ دا معذرت ومني.

مسئول چلوونکی
ا ، م «ګرزی»
اداره دشهیدانو واټ
[ ددولتی مطبعې څنګ ته ]

# کندهار

میاشتنی خپرونه
ادبی . تاریخی . اجتماعی . علمی

کالنی «بیه»
په کندهار کښې [۳۸] افغانۍ
په دننه مملکت کښې [۴۲] «
په دباندنیو هیوادو کې یو ډالر

ګڼه [۱۱] لمریز کال ۱۳۴۰ د دلو [۱] دمیلادی کال ۱۹۶۲ دجنوری [۲۰] پرله پسې ګڼه [۲۳]

## د پښتون ماضی او حال

مخکښې سباوو د ختیځ پرښکلی آسمان رڼا ته لمر ځلیدی و لسونو پوله پله دورورولۍ ژوند کاوه . د پښتونخوا پر جګو غرونو او دری برنې او په رغونو کې سره ګلونه شنه کیدل د پښتنو کیږدیه د غرونو په لمنو کې ولاړې او خلکو ئې د خپل نسل د بقا د پاره داسې دعاوې کولې :-

او په خدایه لویه خدایه — ستا په مینه هر ځایه
غر ولاړ دی دراناوی کې — تر له ژوی په زاری کې
دامنه دی د غرو لمنې — زموږ کیږدی دی پکښې پلنې

داو ګړی تېر کړی خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

دا لنډ زموږ اوربل دی — وږه کوږ کږوږه موږ ورچل دی
مینه ستا کې موږ میشته یو — بل د چا په مله نه یو
هسک او ځمکه نغښته ستا ده — د هرو وده لسه تا ده

دا پیالنه ستا ده خدایه
لویه خدایه لویه خدایه

له آمو تر اباسینده تول د یوه ملیت زانګوه وه . دژوندانه دوبجارو چارو د پاره به په ګډه راتولېدل مشرانو پر کشرانو محبت درلود او کشرانو هم د زړه له کومې د مشرانو د امر اطاعت کاوه دوی د دې ورورولۍ او اتفاق په سیوري کې وکړای شوای چې خپل انسانی وجایب پرځای کړی او د خو پیړیو د پاره عدالت او عالی تهذیبونه په نورو هیوادونو کې خپاره کړی دوی په خپله ژبه ږغېدل او د خپل ادب نه ئې خپله ذوقی تنده ماتوله د دوی د ثقافت به

ماتوه کې دېر دوبوی او رنګ اغیزه نه وه کړې خو دژوندانه په دې ګیرودار کې د اوولسمې په سیمو کې ماشین پیدا شو او د دې پیدا ښت سره سم انسانیت چیغې کړې چې زما د ځکندن وخت را رسېدی سوی دی شرافت ګرزی کړی چې زما پاک لمن داغداره شوه .
خو د ماشین سره صنعتی ژوند پراخ شو او د دې پراخېدو په نرخ کې سرمایه داری نمرکز وموند سرمایه داری د خپل ذاتی خاصیت له مخې استعمار او استثمار غوښت نو ځکه د سوداګرو د کاروان بهیر د ملتونو د استثمار په نیت له غرب څخه د ختیځ په لوری را وخوځېدی د دې خوځېدو سره خو ښکلی اسمان تیاره پوړنه سوی او د نورو وړ ښو په شکل د شرقی هیوادونو پر سرو او خپرې سوې .
استعماری کاروان خپله لاره وهله او وار ، واره قومونه ئې

تر خپلو ګوانډو لاندی کول بـ
خو د هغه برلاسی اوو شونه را
شپږ سوه او په دې هېڅه کې ئې
خپل ابدی استو ګنه غوره کړه
او د خپلې سوداګرۍ په چلو
ئې لاس پورې کړ لیکن د دې
ملك په لویه برخو څو ټو کې د
اباسینه پر غاړه یو قوم پروت وو
چې نو استعمار ته غاړه کېښوده
او نه ئې د پردو فرمان او بادارۍ
منلای شوای نو ځکه استعمار
چیان په دې فکر کې شول چې
د خپلې سرمایې د ګټې او نفعې
اخستلو د پاره د دې قوم په تدبیر
او بی د کړي د پرنګ چالونه
او طلسم خو لیږ نفوذ، په پرنګ
او فریب ئې د پښتنو په منځو نو
کې قبیلوي تعصبونه پیدا کړل
د پښتنو په کورنی چارو کې ئې
د لاس وهلو د پاره نقشې او دسیسې
جوړې کړې، څو د پرنګو نو
په اساس د پښتنو او فرنګ
تر منځ دوه سخت جنګونه پیښ
او د ډیورنډ په خط سره ئې
پښتنی دنیا سره بېله کړه،
د لته نو استعمار آرام شو لیکن
پښتنی دنیا د خپل پرېکړې
وجود له غمه پر او ماتم کې وو
د خدای ئې او ورځې تیرېږي

د قومونو شعور هم را ویښ پدې،
او د سیاسی په آئینه کې ئې د
مستقبل ژوند نقشه دارې کړلې
څو د اسمان دوربل شانتی شو
او استعمار له شرق څخه د ختیځ
د فداکارو مجاهدو د قربانۍ له
برکته خپل کالی ټول کړل او
په ژر منځ، مات مغزی د غرب پر
لوری روان شو خو خپل آخرنی
زهر ئې هم وپاشه او د پښتنو ملك
ئې پاکستان ته په بېړه ځوانی کې
ور کړ. خو پښتانه ژر د دښمن
و دې نیرنګ ته متوجه شول
او د خپل ملی موجودیت او
سیاسی آزادۍ د اخستلو د پاره
ئې په مجاهدو پیل وکړ.
د غه دی څو ورلس کاله وشو چې
پښتنی دنیا و پښه شوی او د خپل
ملیت د اساسونو د ټینګولو او
پاللو نه ئې ملا تړلې دی، د یوې
خوا د پښتونستان پښتانه د
پاکستان د استعماري حکومت
سره د خپلې آزادۍ د اخستلو
د پاره په ملی قیام لاس پورې
کړی دی او د بلې خوا په توله
پښتونخوا کې د ملی ادب، هنر
او ثقافت د راژوندی کولو
د پاره راز راز سعی او
کوشش شروع شوی دی پښتانه

لیکوال او شاعران هڅه لري
چې د نوي او مترقي ادب خاوندان
شي. د پښتون معاصر نسل
په کمرغه دی چې په داسې
زمانه کې ژوند کوی چې د
یوې خوا ئې مشران د قومی
تعمیر په جوړولو لګیادی او د
بلې خوا څخه ټول منورین او د
قلم خاوندان د نوی فکر په
رڼا کې د یوه سپېڅلی ملی ادب
په تخلیق کې زیار باسی. اوس
هم که د پښتو ادب ته وکتل
شی په دې باره ډېره مواد کې ئې
په زړه پوری انکشافی سیر
کړی دی او د نوی ادب د پاره لار
برابره شوې ده خو د نوی
نسل د پاره دا د زیاتی پاملرنی
وړ ده چې خپل ذهن او
دماغ ته داسې پراختیا
ور کړی چې لومړی د خپل
ملی ثقافت د را ژوندی کېدو
د پاره یوه نوې سره کېدونکی
جذبه په ځان کې پیدا کړی
او بیا د یوه داسې تخلیقی ادب د
منځ ته راوستلو د پاره زیار وباسی
چې هغه د ولسی ژوند ترجمانی
وکړای شی او د پښتنی دنیا د
مستقبل د پاره غوره او روښانه
لار او لیکه وټاکی. د ګرزی

ظاهر افق

# اگوست کنت

## او اجتماعیات

تر ټولو دمخه باید داووایو چې د اجتماعیاتو علم او اجتماعی علمونه فرق سره لري. اجتماعی علمونه یو په بل پسې په مختلفو پېړیو کې یا یو دمخه بل په پسې او یا بل دمخه مخه یو په پسې میدان ته راغلی او تر خپلو معلومو شرطو لاندې ئې تکامل کړېدی.

داجتماعیاتو علم چې په نولسمه پېړۍ کې پیدا سویدی ډېر تازه او نوی علم دی. ددې علم مهمه موضوع یا بشری جامعه اود هغوی په ارتباط پوری اړه لري یعنې دهغه علم ته وائی چې د یوې جامعې اړیکې اوارتباط د بلې جامعې سره وښئي. دغه علم دا خبره واضح کوي چې یوه جامعه او یا یو فرد د بلې جامعې او یا یوه فرده سره څنګه تړلی دی، ددغو افرادو او جامعو ترمنځ مناسبات په هر لحاظ چې وي د اجتماعیاتو د علم په لمن کې تشریح کیږي.

څنګه چې دغه نوی علم د بشری ټولنې له خوا زیات اهمیت لري نو هغه اندازه بیا د ډېرو مشکلاتو په غېږ هم ورغلی دی داسې:

سیانس یا تجربوی علم چې په لا راتوار کې کله د تیوبو سره اختټوی او یا کله بیا د ما یکرسکوپ پور هغه دارهٔ پورته کښته کیږي، همدا سې کله بیا په تلسکوپو بازي کوي هر یو بخپله ساحه کې اسبت وسوسواوجی نه ساده او خپلې تجربې دخپلو قوانینو په غېږ کې په اسانی سره اجرا کولای سی اما داجتماعیاتو دعلم دډېر مشکلاتو څخه یو مشکل دادی چې باید دمختلفو ټولنو مطالعه وسي، دهغوی دهری تکنې څخه داسې معلوماتونه لاس ته راوړه سي چې دهغو له مخې عمومي پرېنسیپونه وضع سي چې ګوا کې دداسې عمومي پرنسیپو استخراج یو اسانه کار نه دی اود لابراتواری عملیو او تجربو څخه خوراډېر فرق لري.

که څه هم تر له علمونه یو له بله لیری یا نژدې ارتباط لري او ډېر ځله پېښیږي چې یو له بله دی کومک سره وکي. نود اجتماعیاتو علم هم د اوروعلمو سره ښه اړیکې ساتي او نور ډېر علمونه دده د پاره خدمت کوي. مثلاً انتروپولوجی، اقتصاد، سایکولوجی او تاریخ د اجتماعیاتو دعلم د پاره ښه کومک کوي او ځان ته ئې ځني ژغورلای.

د اجتماعیاتو په علم کې خورا ډېر، ډېر کتابونه لیکل سوي او هرعالم دخپلې ایډیالوجی پراساس څه نه څه پکښې ویلی دی، خو بیا هم اګست کنت ددغه علم پلار بلل کیږي.

کنت په نولسمه پېړۍ کې د غربی اروپا خورا مشهور فیلسوف تېرسویدی (دایډالیزم په دنیا کې) چې علاوه پر فلسفی نوښتو داجتماعیاتو موسس هم یادیږي.

کنت چې لا ورو کی وو د یوه جلا احساس خاوندوو، ده خپل شخصی سبق هم ویلی دی اود یوې تجیبې کورنی څخه راغلی دی، ده په خپله ځوانۍ کې ډېرې مباحثې او مناقشې کړې طرفداران ئې نه درلوده دخپلې کورنی مذهب ئې هم په ټینګه غانده، او په وارو، وارو ئې پر خپل زاړه مذهب باندې

انتقادونه او نوشتې کړېدي، دائې خورا خوښه وه چې دی به یو ځای کې ودرېږي او ځوانانو ته لکچر ورکي. په هر صورت یو متحول انسان وو څه وختونه چې اوږ باندې تېرسوه ونې بیا و مذهب ته مخ ور واړاوه او دې خبرې ته ئې فکر سو چې مذهب او ساینس سره تطبیقېدای سي، دلته نو نه یوازې دمثبت ذهن خاوندان ځنې خوابدي سوه بلکه د مذهب خاوندانو هم ادبګی ځنې یړې کې ځکه چې ده مذهب سر کشاوه، پداسې حال کې چې دا هیڅ امکان نلري، که څوک وغواړي چې د مذهبي تارونه سره وغزوي هغه حتماً یا سره شکېږي او یا نه غزېږي.

خولندهٔ ئې دا چې اګوست کنت دخپلې دغې نوې مفکورې پاره یو کتاب دمثبتې فلسفې په نامه نوشته کې په هغه کې ئې دخپل زده تو له غوټې خلاصې کړې او دا بیان ئې ورکړېدی چې مذهب او سیانس سرسره خوري، کنت دخپلې عمومي فلسفې له مخې دافرادو دعمومي انکشاف په باره کې وائي: چې تول انسانان درې مسلسلې مرحلې لري:-

۱] مذهبي «الهي» مرحله.
۲] فلسفي مرحله.
۳] مثبته یا علمي مرحله.

ده له بیانه څخه داښکاره ده چې یو انسان وار دواره دخدای په پرستش اخته وي یعنې دغه مرحله ئې یوه مذهبي مرحله ده. ترهغه وروسته وده نه یو فلسفي فکر ورپیدا کېږي څو چې په آخر کې و یوې مثبتې ساحې ته را ورځي.

د کنت او دې درې مرحلې تر یو حده پورې درستې بولو چې دهم ډېر بیانونه او نوشتې ډېر کړي او د ثبوت دپاره ئې خورا زحمتونه ایستلي دي.

که موږ ونننۍ جامعې ته و ګورو او یا د تاریخ په زاویه کې د بشرانی انسانانو مطالعه کوو داعمومي پرنسیپ نه لیدلای او نه ئې قبلولای سو، چې هر فرد دې حتماً او دې درې مرحلې تېرې کې.

ځکه د مثال په ډول دنن ورځې په علمي او مترقي جامعو کې که و ګورو هورې داسې خلګ خورا ډېر دي چې په مطلقه مثبته او علمي مرحله کې واقع دی او ئې دمذهبي دورې ورځې تېرې کړې او نه ئې د فلسفې مرحلې دوب دوب فکرونه وهلي دي. بلکه په یوازې مثبته او علمي مرحله کې تربیه او انکشاف ئې پیدا کړېدی.

په دغه ډول په ډېرو بدوي محیطو کې ډېر داسې خلګ سته چې نه دمثبت علم په مفهوم پوهېږي او نه ئې فلسفي خوندور فکرونه ځان ورا پله کړي وي بلکه پخپله هغه ابتدائي او مذهبي دوره کې ژوند کوي څنګه چې په خورا جامد شکل دمیراث په ډول ورته رارسېږي دا ورو خبرو څخه په دا خبره راوپاسو چې هر انسان درې مرحلې نلري.

یوازې هغه انسان چې په ابتدا کې په مثبته او علمي مرحله کې ده وي او وروسته نو بیا په مطلقه علمي ساحه کې ژوند شروع کوي دغه درې او دې مرحلې ورته لازمي دي.

یعنې که سړی په مذهبي مرحله کې وي او بیا نو و علمي مرحلې ته ځان رارسوي بایدې چې فلسفي

«نور په ۲۴ مخ کې»

ليکونکى تولستوى دشوروى اتحاد
نسامتو ليکوال مترجم «-ربت»

# زړکتوب

اى زوړ کلى بختورو ورځو !! اى هغى محبوبى زمانى چى بيرته نه راستنو ليږى !! ولى به دى په درستى نه وياد مه او تينګه ميند. به نه درسره ارمه ، ستا په تشه يادونه سره مى خاطر تسکين پيدا کړى او زړه مى له ډېرى خوښى څخه ونڅېږى .

اى محبوبى زړ کيلى! خاطرى دى زمانه دخوندو او سرچينه ده چى د کلو کلو اوزده تنده مى په ماتيږى .

اى زړ کتوب!! ستا په زمانه کى مى روح آزاد او زړه ښاد ؤ ، غم مى نه پيژانده اوله فکرو اندېښنو سره مى هيڅ کار نه درلودى، دزړه په اراده اود خاطر په غوښتنه سره به پاځېدمه او کښېنستمه باور وکړه چى هغه ورځى دى ديوه شيرين خوب په څېر سره تراوسه پورى زما له ياده نه دى وتلى په هره اندازه سره چى راڅخه ليرى کېږى په هغه اندازه سره غمونه را ته نژدى کېږى او بې اختياره مى ژړلى او ښکى له سترګو څخه رانوى ځى اوزده مى پر له واوړى .



ښه مى په ياد دى چى ستا په بختورو ورځو کى به مى پر زړو کى چو کى باندى دشيدو

پیاله په لاس کې وه او سترګې پټې مې له خوبه څخه نشوای سره اړولای . د مهربانې مور و شیرینو وینا ؤ نه پټې مې غوږ نیولی ؤ او د شفقت له تړانو څخه پټې مې ئې خو انداخیستې کله چې په ما په نیم خوبۍ حال کې ورته و کتلئ . نو ددې په له خندا څخه خوله و پرې شوه قسم دی چې پر ما به له ډېرې خوښۍ څخه د اختر ورځ شوه . کله به د خوب په خمارۍ سترګو سره د یوې ودې تقطي په څېر راته و ایسېدله سره له هر څو مره څیرتو به په ئې جسم بلکل تغیر نه کاوه او دیوه عکس په څېر سره بلد سترګو به کسې کې منعکوسېدی زه به ولاړ شوم او پر یوه شکلې چوکې باندې پټې مې سرتکیه کړ .

مور به مخاطب ولم او راته ویل به ئې : [نیکولینکه] بیا خوب درغئ که پورته بالاخانې ته و خیژې شه په وې ما به د خوب له حاله څخه په یوه نامفهومه کلمه سره جواب ور کاوه نه بیدیږم مګر سره لنه ئې به د ور کتوب خوب په غیر ارادې دول سره غلبة راباندې و کړه چاچه به وښورولم بیخې به مې له محابه څخه حرکت نشوای کولای .

ښه مې په یاد دي چې د خوب په عالم کې به مې د ګرانې مور لطیف لاسونه چې زما له وجود سره به ئې تماس کاوه مچوله او له ډېره تازه څخه به کله پر یوه اړخ او کله پر بل اړخ واوښتم په رشتیا چې مور څو نه لوی نعمت او د رحمت فرشته ده او مور لرونکي ماشومان څو مره بختور دي .

کله چې به هغه شم چې زما د بیدېدلو په وخت به لګېدې و آخر ته ورسېدې نو مورجانې به په یو عالم خواخوږي او محبت سره په کرار، کرار ښورولو سره ویښ کړم او د شفقت ښکلې ګوتې به ئې تر ډېره وخته پورې زما په طلائي ویښتانو کې وهل کېدلې او هغه خوږ آواز به ئې ما اورېدې چې راته ویل به ئې : اې زما د زړه سر او د سترګو توره زویه! ویښ شه چې د ویښېدو وخت دی زما چې به هر څو مره استغنا ډېرېدله په هغه اندازه به ددې شفقت او محبت زیاتېدې او بیا به ئې په کوچنۍ ژبة راته ویله ویښ شه خو د ویښېدو وخت دی په خپلو لېستو ګوتو به ئې بووار بووار هم و نخوولم .

هغه اطاق چې زه به په یکشنبې غږېدلم لېږر و ښفاني ئې در اوده او سره سخا به یکشنبې وه ددې مسلسلو ښورولو به ګاهې قهر راوستې اما ددې د محبت ژغو به هم هغسې دوام درلودې په پای کې به له خپلې دې سپین سترګې او ددې له هغه محبتة څخه شرمنده شوم را وبه غورځېدم د مینې لاسونه به مې ئې په غاړه کې ور واچول او د هغې سر به مې و خپل تړ ته نژدې کړ . په نیم کلة کوچنۍ ژبة به مې ورته وویله : هو ئې ګوره چې خوابدې نشې ، مورجانې ته پر ما ډېره ګرانه ئې ، مور به مې و مسله او په یو عالم شفقت او مهرباني سره به ئې و خپل ځان ته نژدې کړم او پرتندي به ئې مچ کړم نو راته و به ئې ویل رشتیا وایه : زه پر تا ګرانه یم داګرانښت دې باید دوام ولري او داسې نشې چې څو ورځې پس دې له خوا او خاطره څخه بېخې ووزې .

که زه مړه شوم او نه بې موره شي هم مې مه هېروه. ای نیکو لفیکه اوس به لا تینګه وعده راسره کوې دا به نې وویله او بیا به ئې زما نفس مې مچ کړ. زما به ئې به دې وینا سره او ښکې له سترګو څخه جاری شوی او لاسونه به مې ئې ځو واره مچ کړه.

ښه مې به یاد دي چې ما به هم د مور له غوښتنې سره د مخه تر بید پدو د نما لخنی به وخت کې وحقیقی معبود ته سر نیت کړ به پېر عاجزی سره به مې وویله: یا که خدایه! زما مور و پلار په خپل حمایت کې وساتې تر دې وروسته به بیا پژبستر و غزېدم او ښلتك به مې پرسر را کش کړ روح به مې تازه او زړه به مې خوشحاله او خیالونه او تصورونه به مې دېره او د پل په تعقیب سره تله او را تله دې تصوراتو له پوره پاك عشق او نیکی آرزو څخه سرچینه اخیستې وه. د خپل ښوونکی [کارل ابوابنچ] د نور بخت خاطري به مې هم را په یادولي او له پرېشانه حال څخه به ئې ډېر متأثر کېدلم او له پا که ښېښتنه څخه به مې دده د ښك بختی او سعادت غوښتنه وکړه اودا به مې وویله: الهی ما نه له ده سره د مرستی او معاونت توفیق را کړې، الهی زه به تر له قوه سره حاضر یم چې تر ده ځان فدا کړم.

کله چې به مې خپل د لو بو شیانو ته چې بو د چینی سوی او بل د چینی سپی و به ډېره هینه سره و کتله بیا به مې و پاك خدای ته د مناجات لاس پورته او و به مې ویل، الهی و ټولو خلګو ته په خپل فضل او مرحمت سره سعادت ور کړې او ټولان په نعمتو سره ماړه او په راحتو سره آسوده کړې.

دا فکارو او تصوراتو د کېدن په وخت کې به ات پرلت او ښتم په داسې حال کې به خوب یووړم چې سترګې به مې له اوښکو څخه ډکې وې.

آیا وزړه ته مو لویږی چې د ور کتوب د بې پروائی، عشق او وفا حال به پېر ته را ستون شی آیا بیا به داسې وخت راسي چې د بې آلایشه خوشحالی فضیلت او د بې ریا عشق آرزو زما د ژوند پواز نی سببونه شی؟ هغه زمانو دې غوښتنې چیری دی؟

هغه د اوښکو تحفې چې ما نه ئې دادر اکاوه څه شوې؟

ای ژونده! دغه درنو انرو بېټی دی زما پر زړه بار کړه چې د ور کتوب د بختورو ورځو خوښیو د مفارقت لاس را او ږد کړ او س ئې غیر له نشو خاطرو څخه بل شی زما په متخیله کې نه دې پاته.

بناغلی ارمانجن

## د لیکلو قریحه

وائی چې کانت دارو با نو میالی فیلسوف به تل د خپلې خونې د کړ کۍ نه نژدې کښېنستی او یو برج ته ئې چې دده د کور برمخامخ ولاړ وو به څیر څیر کتل او وروسته به ئې دا لیکلو قریحه وپرا ستل شوه او د خپلو نه هیرېدونکو آثارو په لیکلو به ئې پیل وکړ. کلو نه به دې دول تېر شول څو دده د خونې د کړ کۍ په مخ کې د سرك پر غاړه اونې ونې شنې شوې. کله چې به نو موړی فیلسوف د کړ کۍ څخنګ ته راغی او غوښتل به ئې څه ولیکی او هغه برج به ئې ایدلای نه شوای څکه دده او د برج ترمنځ چګې ساېه دارې ونې*

د افغانستان لرغونی تاریخ

لیکونکی: میرغلام محمد غبار

# د سکندر په مقابل کې د افغانستان دفاع

د افغانستان ملك په خپل تاریخي خط سیر کې دوه ځله د مغرب د جهانګیرو قوتونو سره مخامخ شوی دی یو وار د مسیح د میلاد نه درې سوه او څو کاله وړاندې د یونان او مقدوني سکندر له لښکرو سره او بل وار د نن څخه دوه سوه او څو کاله پخوا د برتانیې د دولت سره خو د دغو وروستیو لښکرو سره ئې په دوو جلا، جلا ډولونو شوې ده.

لومړی ډول ئې: یو واز غیر مستقیم او بالواسطه و، خو دوهم ډول ئې: بیا مستقیم او په درې ګونو جګړو و پښل شوی دی. په هر حال په دغو ټولو پېښو کې افغانستان یوازنی هیواد دی چې په ختیځ کې ئې د خپلې آزادۍ او خپلواکۍ په هکله د هر بل هیواد نه زیات د فرنګي د لښکرو او قوت سره دغړي وهلي دي او په نتیجه کې ئې د بل هر هیواد نه زیات خپل استقلال بیرته اخیستی دی.

زموږ د خبرو موضوع دلته همدغه د یونان په مقابل کې د افغانستان دفاع ده او د انګلیس په مقابل کې د افغانستان د دفاع نه دلته څه نه وایو.

هغه مشهور جهان ګیر سکندر چې د نړۍ په تاریخ کې له پخوانو نه زیات کسان ور سره سیال نه دي په ۳۳۴ ق م کال کې د نړۍ د یوې برخې آبادو هیوادو د را لاندې کولو پسې راولاړ شو، د څلور کالو په موده کې ئې وړه آسیا، د مصر او ایران ستر هیوادونه ونیول په همدغه سلسله کې د یوه ستر فاتح لښکر په ملګرتیا په ۳۳۰ ق م کې زموږ خاورې افغانستان ته راغی غوښتل ئې د دغه کوچني هیواد نه په منځنۍ پرشی او د هند د هیوادونو سره ګرنی ماني کړي.

اوس سکندر چې پخوانې ځان د مور او پلار له خوا د هرکولیس د قدرت او «آشیل» رب النوع او د یونان د روایاتو قهرمان باله او په مصر کې ئې د «امون» د زوی لقب چې د هغه ځای د فراعنه وو عنوان و، غوره کړ او دا دی اوس چې د هغو ټولو سترو فتوحاتو سره افغانستان

* ولاړې دي او د ده د ایسکیلو د قریحې مانع به ګرځېدل، څو په پای کې فیلسوف ناچاره شو چې د ښاروالۍ او ریاست نه شکایت وکړي ښاروالۍ هم ځرنګه چې د هغه ستر فیلسوف و علمي مقام ته خاضع وه نو حکم ئې امر وکړ چې د سړك د غاړې ځنګلي ونې له بېخه ووهي څو نومیالی فیلسوف د ایسکیلو په وخت کې هغه برج وويني کله چې د کړکۍ له مخې څخه درختې لیرې شوې نو د نومیالي فیلسوف کانت قریحه د ایسکیلو دپاره په کار ولوېده او نسبت و پخوانیو لیکنو ته ئې دوه غوره او نه هېرېدونکي آثار له ځانه په یادګار پرېښول.

نه راغی دومره مغرور او کبرجن شوی ؤ چې د خدائی دعوه ئې وکړه خو دېر ژر ئې دې خبری ته پام شو چې افغانستان هغه شان نه دی چې ده فکر کړی ؤ. سکندر په طوس کې ؤ چې ساتی بارزانس د هرات محلی حکمران ده ته ورغی او د خبرو په ترڅ کې ئې د یونانیانو د سوقالجیشی او د ورسره شخصیتونو او لښکرو بوره بوره اندازه واخیسته او بیرته راوګرځېد.

ساتی بارزانس دومره صبر وکړ چې څنګه سکندر د هرات نه مخ په بلخ وخوځېد او خپلی لښکری ئې په هرات کې پرېښودی نو په دغه وخت کې د ملاس په زوره کښېښو د یونانی منصبداران او لښکر ئې له مینځه یوړل. بیا سکندر د خپلو متصرفه علاقو د ساتنې لپاره بیرته راوګرځېد خو ساتی بارزانس ئې نه موند او مجبور شو چې یوه جنګی کلا ودانه کړی، لښکری پکښې واچوی او خپله مخ په کندهار مارش وکړی.

بسوس د بلخ محلی حکمران چې دایران د هخامنشی کورنۍ دریم داریوش ئې وژلی ؤ او د نوی دولت تېزه ئې ایښې وه فرصت ونه موند چې د سکندر په مقابل کې د دفاع تیاری ونیسی، د سیستان محلی حکمران هم ځان ګوښه کړ او د سکندر لاره ئې خوشې کړه خو چې سکندر راورسېد او وائی وریدل چې ساتی بارزانس بیا په هرات یرغل وروړی او یونانیان ئې وهلی تکولی دی نو دغه وخت سکندر د هیواد د مشرانو په تدبیر یوه شو نو څنګه بخپله بیرته را ونه ګرځېد خو ۷ زره پلی او سواره ئې هرات ته واستول او ځان ئې کندهار ته وابست.

پدغه وخت کې بیا خبر ورغی چې دا پلا بیا ساتی بارزانس په هرات یرغل وروړ او بسوس دوه زره کسان ملاتړ ور استولی دی. سکندر په ایران کې خپلو قومندانانو ته امر وکړ چې په هرات کې د یونانیانو مرستې ته ورشی او خپله ئې له کندهاره هم یو ټولګی عسکر ور واستول. ساتی بارزانس چې له دریو خواو محاصره شوی ؤ نو د دښمنانو سره ئې دومره تور بالی جنګ وکړ خو آخر د جنګ په میدان کې ووژل شو. سکندر په دادې زده مخ په کابل را روان شو خو د غزنی او هزاره‌ؤ په غرو کې ځای په ځای د دفاع سره مخامخ شو خو چې پروان او کابل ته ورسېد بسوس د هندوکش شمالی ددې ته تولی لاری ورانی کړی او د حیوانانو آذوقه او واښه ئې له مینځه یوړل، خپله له جیحون نه تېر شو او د هغه ځای تولی بېړۍ ئې وسوزولې او د شین ښار (شهرسبز) په شاؤخوا کې قریبا د ۷۰۰۰ سپاهیانو په سنبالولو بوخت شو. سکندر صرف په ۳۲۹ ق م کال کې همدومره وکولی شول چې په هندکش او جیحون راواوړی خو متاسفانه چې بسوس د ناروغۍ په وجه د دښمنانو په لاس کې بندی شو او په ځای ئې د باختر ته بو بل سری چې سپتیانس نومېده را ولاړ شو. دا سړی د سکندر و مخې ته په داسې حال کې چې ان تر سیحون پوری تللی ؤ ودرېد. سپتیانس لکه د نورو افغانستانی ملګرو پشان

د ملي دفاع سیاست غوره کړ بدې ډول چې د یونانیانو د مستقیمې مقابلې نه منصرف شواو د لارو د خرابولو او د وښو او آذوقې له مینځه وړلو او په دارو او داکوټې د سکندر د نظامي فرقې ادو په ضد فعالیت شروع کړ نو ځکه ئې د ملي داوطلبو لښکرو سره په سمرقند برغل وروړ او هم ئې د سکندر امدادي لښکر د زرافشان په ناوه کې له مینځه یووړ سکندر مجبور شو شخصاً ئې مقابلې ته ورشي خو هر کله چې هغه تر مخه بلخ ته تللی و سکندر هم باختر ته راغی او نوولس زره ملاتړ عسکر ئې له یونانه ورته راورسېدل په دغه وخت کې طوس انقلاب وکړ او سکندر هغه ځای ته خپل عسکر له پنځو لارو ته واستول او د هغه ځای وګړي ئې لاندې کړل، وروسته ئې شخصاً په مرو برغل وکړ چې په پای کې د آریمازس محلي مشر د پرېکلکې دفاع نه وروسته بندي شو او په دار وځړولی شو.

په هر حال له دې نه وروسته سکندر بیا د میمند د سین پر غاړه د اندلس د غرب نه مخ په شرق ولاړ او په ۳۲۶ ق م کې د ننګرهار او لېنډۍ په دوه میلې کې تا کسیلا او می ځای ته ورسېد او په دغه ډول ستر امپراطور وګرلای سو چې له څلورو کالو له ډېر او پراله پسې جګړو او زیاتو تلفاتو نه وروسته د افغانستان له هیواد نه تېر سو په داسې حال کې چې د ده د څه محدودو جګړو په اثر د څلورو کالو په موده کې د ودې ایشیا ټول هیوادونه سره له مصره او ایرانه فتح کړي وو. [ناتمه]

لیکونکی ئې ډیل کارینګی

پښتو کوونکی انوارالدین «انوار»

# انتقاد د عظمت اثبات دی

که خلک بې موجبه پر تاسو انتقاد وکړي مه خوابدي کېږئ ولې چې انتقاد هغه مهال کې او تعریف دی چې په مخالفه لهجه تاسو ته ویل کېږي.

په ۱۹۲۹ عیسوي کال کې د امریکا په زیاترو علمي ټولنو کې یوه غوغا جوړه او په نتیجه کې ئې انعکاسات د هغه وخت د مطبوعاتو او خپرونو په وسیله میدان ته راووتل.

د دې غوغا سبب د «روبرت - هاچنسون» د دېرش کلني ځوان هغه تقرر و چې د شیکاګو د پوهنتون د رئیس په حیث انتخاب سو دا باید په نظر کې ونیول سي چې په دغه عصر کې دغه پوهنتون د امریکا د لویو علمي مؤسسو څخه شمېرل کېدی.

څه وخت چې نوموړی د رئیس په حیث انتخاب سو د یو لړ هم عصره علماؤ د انتقاداتو په اثر د شکنجې او تشنج سره مخامخ سو، دا انتقیدونه پر ده یوازې د ده پر بې تجربه ګۍ او طفلانه افکارو کېدل بلکه د ده پر اصل او نسب ئې داسې لیکنې وکړې چې په پای کې ئې د ده د مخفي سوانح په استناد د «بېل» د اکاډمۍ په خدمت ثابت کې. کوم مهلمستیا چې د روبرت د ټاکل کېدو په

مناسبت چې وړه شوې وه دده د
نږدې دوستانو څخه یوه سړي
د «روبرت» پلار ته داسې اظهار
وکړ :

«بېچاره روبرت دی چې ننني
اخبارو او مجلو په سپکه او
ناوړه مقالو او تنقیداتو لاندې
نیولی دی، کوم اهانت دی چې
ستا زوی ته دهغه نسبت ندی
سوی؟» د روبرت پلار دپورتني
جملې جواب په متینه اراده
داسې ورته ووایه «تول تنقیدونه
او ناروا نسبتونه کوم چې زما
زوی ته ئې نسبت کیږي زه په
اخبارو او مجلو کې لولم خو د
هغو په باره کې زما نظریه بېله
او عقیده لرم چې دا انتقادونه
تول زما د زوی دشخصیت پر
عظمت شاهدي ورکوي داځکه
څوك چې هر څومره اوچت وي په
هم هغه اندازه د انتقادونو
هدف گرځي. ډېر خلك پېژنم
چې د انتقاد او سپکنځلو څخه
حظ او خوند اخلي پدې وختو
کې مې یو لیك چې د یوې
مېرمنې لخوا د خیرئې تولنې
در ئیس په عنوان لیکلی شوی و
مطالعه کی. پدې لیك کې
ډېر انتقادونه او یولږ تهمتونه

وهغه رئیس ته لیکل شوي وو چې
په آخر کې ئې تومونږی پدې
جرم په [۸] ملیونه داره دهغې
خیرې موسسې څخه چې دده ئې
ریاست پرغاړه درلود په نامشروع
ډول تصرف کړېدی ملزم
بللی و.

زه پدې کې هیڅ شك نلرم چې
دغې ښځې تـولې لیکنې د
تهمت دلارې صورت نیولی و
ولې چې ما هغه رئیس ښه پېژندی
چې یو فعال او صادق سړی و
داچې دغې ښځې په هغه یوړی
یولږ تهمتونه تړلي و د هغه
موجبه صرف داوه چې ددې مېړه
چې هم د کومې موسسې آمریت
پرغاړه درلود د دغه رئیس سره یو
ډول رقابت درلود چې ددغې ښځې
منظور دهمدغه رئیس دشخصیت
د مقام تېټوالی و پدې باره کې
شو پنهاور داسې نظریه څرگنده
وي. «بېعقلان خلك پدې چې
یولوړ او نیکنام سړی تر تهمت
لاندې کړي یو قسم لذت اخلي»
او دا کېنه او ناوړه عادت په یوه
مخصوصه طبقه اړه نلري.

دگرانو لوستونکو د پاره یو
بل مثال داسې راوړم:-
«د ریـاساالار رابیـري، چې د

شمال قطب ئې کشف کی په سله
هغه چې تر یوه ئې پر بالی مسافرتو
ته حیرانه تللی وه او یا داچې د
پخوانو عالمانو آرزوگانې ئې
ور ترسره کړې او په هغو مسافرتو
کې دداسې مخشیو سره مخامخ
سو، چې هرگړی ئې دمرگ
احتمال کېدی چې پدې سلسله
کې معالجو طبیبانو دده د پښو
انه گوتې پدې سبب چې وچې
سوې وې څخې پرې کړي دي د
هغو مشکلاتو په اثر چې د سفر
په وخت کې ورته پېښ شوي و
نږدې و چې خپله عقلي موازنه
دلاسه ورکی خـو کـله چې
کامیـاب خپل هیـوادته را
غبرگـئ سو حاسدانو او لنډ نظرو
خلکو پدې تهمتی کی، چې د
سفر کومه تخصیصه چې ور کړه
شوې وه ده پخپلو دوستانو مصرف
کړېده، دغو انتقاداتو دوام
پیدا کی، او په نتیجه کې ئې
دهمدغه شق ډېر شوقمندان د
خپلو نظریاتو څخه وگرزول.
سالار پیری هم ددې قسم اکتشا-
فاتو څخه ځان گوښه کی او
اضافه ئې دخپله ذوقه سره سم
علمي مسافرتونه ادامه ور نکړه

«نور په ۲۴ مخ کی»

«پاینیو»

# کره کتنه

## د مذکر جمع

یو وخت چې د پښتو له پاره کم ابتدائي کار سوی دی خو وسو، مګر څه چې نور کار باید له هغه آغازه څخه بر اضافه کړه سوی او بر مخ بې تللی وای نه ولاړی، او نه خونې ارس څه تلنګ معلومېږي بلکه بر ځای د دې چې یو ښور او حرکت پیدا سوی وای خو پیدا نه سو مګر څه چې و منځ ته راغله یو غوڅښت او ځای پر ځای سره او ښتنه و چې ښه اوږده وخته څخه دوام لري. خو دغه غوڅښت هم د شخصي مفادو له پاره دی چې کله، کله خو بیا څوك ؤ څوك یو تصنعي احساساتي رنګ هم ور کوي ...

لنډه ئې دا چې غوڅښت ژبه مړوي او غوړوي ئې نه یعنې د یوه خولې د بل پر سر ور ایښوول یا نه ایښوول، و یوه شي ته له یوه نامه څخه بل نوم ور کول یا نه ور کول، ځینې مواد له یوې شمېرنې څخه تر بلې شمېرنې لاندې راوستل یا نه راوستل د موضوعاتو الفاظ وراړول یا نه اړول؛ په دغو څو محدودو مؤخذو کې پیله کم نوی څرګه څخه پوره نه او کښته کېدل یا نه کېدل ... تر لي داسې ښېښي دي چې کم ژبنی اساسي اهمیت نه لري. په هره توګه اوس خو دغه مرحله راغلې ده او تر یوه وخته پورې به پاییږي، مګر علتونه ئې بیا نول په دریاب کې د کپ کپ دي او بس.

* * *

په دغه نوې کتنه کې د «مذکر جمع» په باره کې یوه عمومي کتنه در وړاندې سوه، چې ښاغلي بختاني دده په نوموړې لیکنه کې «سر بېره پر خپلې استقراء باندې له دغو یې څلورو مؤخذو څخه استفاده کړې ده :-

۱- د پښتو ژبې لیاره ...

۲- لیکوالی: له دغې څخه ئې د پښتو تولنې پر څو فیصله سوي کلمات را اخیستي دي.

۳- کابل مجله: د ښاغلي تږي مقاله چې د خوشحال خان د کلیات پر ځینو مړو جمعو باندې ئې لیکلې او ښاغلي بختاني ځنې را اخیستي دي.

٤- پښتو ګرامر: په دغه نوې کره کتنه کې هم د ښاغلي رښتین د ګرامر یادونه سوې او اوس به د دغه ګرامر او د ښاغلي بختاني د لیکنې تر منځ یوه مقایسه وړاندې سي. د دغو دوو لیکنو د مشترکې موضوع تر منځ مقایسه په دې نیامت کېږي چې ښاغلي لوستونکي د پر له کان یخواني اثر او د یوې سېزنې نوې لیکنې تر منځ تحول او تشابه و ګوري، چې کم تغییر او نوی والی پکښې پېښ سوی دی. مګر په دغې

بر نلنی کی به له مثالو څخه چندانی څه ونه ویل سی، ولی چی بوخو اکثر و سره مشترك او باسره بیل دی او بل بر دغه ادخ باندی تر مخه هم بحث سوی دی. اوس به یوازی د هغو موادو پر نلنه وراندی سی چی په دغی موضوع کی ددوی له خوا څخه تشخیص سوی دی.

ښاغلی رښتین د خپل پښتو ګرامر له ۵۲ م مخه څخه بیا تر ۶۳ نم مخه پوری، د [جمع مذکر و قواعد ساختن آن] تر نامه لاندی لیکی:

۱- اسما و صفات مذکریکه به یای ماقبل مفتوح مختوم و در اول یا وسط آن خج [فشار آواز] موجود بوده خواه ذیروح باشد یا غیر ذیروح بسیط باشد یا مرکب، تنها به به یك صورت یعنی تبدیل یای معروف جمع میشود.

ښاغلی بختانی بیا په خپله مقاله داسی کی کښلی دی:-

۱- که د مفرد نوم او صفت په آخره کی ملینه [ی] وی نو جمع ئې پەدې شکلو نو راځی:

الف: که په نوم او صفت کی خج وی نو دو وستی ملینه [ی] په معروفه [ی] اوړی.

۲- اسما و صفاتیکه به یای ملینه انجامیده باشد و خج در اول و وسط آن کلمه موجود نباشد این ګونه اسما بر دو ګونه است.

ب: چی په نوم او صفت کی خج نه وی نو جمع ئې دوه شکله لری:-

الف: غیر ذیروح: اسما و صفات غیر ذیروح قرار قاعدهٔ نمرهٔ «۱» یای آن به یای معروف تبدیل شده جمع ساخته میشود.

اول: په بې سا نومو او صفاتو کی ملینه [ی] په معروفه [ی] اوړی.

ب: ذیروح: اسمای ذیروح و صفات ذیروح به دو صورت یعنی هم به یای معروف و هم به علاوه نمودن «آن» در آخر بطوریکه یای ساکن آخر مفتوح و حرف ما قبل آن ساکن ګردد، جمع میشوند.

دوهم: د ساکښو په نومو او صفاتو کی «۱»: ملینه [ی] په معروفه [ی] هم اوړی، او «۲»: په آخره کی ئې [ان] هم زیاتیږی د [ی] نه مخکی توری ساکن کیږی او پخپله [ی] په زور خوځیږی یعنی د دغه شکل جمع دوه صورته لری.

۳- اسمائیکه در آخر آن یای ملینه نسبتی ایکه مقصود از آن نسبت به مسکن و وطن میباشد، آمده باشد، نیز به دو صورت مذکور جمع میشود. (په پورتنی دوهم پوری اړه لری او مثالونه ئې سره ګډ دی).

۴- هر اسم و صفت مفرد مذکریکه در آخر آن یای معروف یا واو معروف نسبتی موجود باشد یا واو آن مفتوح و حرف ما قبل آن ساکن ګشته در آخرش [ان] علاوه شده جمع ساخته میشود.

۲- که د مفرد صفت په آخره کی معروف [ی] وی، نو د جمع په صورت د دغه [ی] نه مخکی توری حرکت له منځه ځی دغه [ی] زور پیدا کوی او په آخره کی ئې [ان] زیاتیږی.

۵- هر اسمیکه در آخر آن واو معروف اصلی باشد، اسما و صفات مختوم با الف، و همچنان اکثر صفاتیکه مختوم به های جلی باشد در آخر آن علامهٔ «ګان» علاوه شده جمع ساخته میشود.

۴- که د مفرد نوم په آخره کې معروف [و] وی، نو جمع ئې په دې صورتونو راځی:-
الف: په جمع کې ئې «گان» زیاتیږی.
۳- که د مفرد صفت په آخره کې [الف] وی نو جمع ئې دوه شکلونه لری.
الف: د پښتو القابو په آخره کې «گان» زیاتیږی.
۵- که د مفرد صفت په آخره کې [زور] وی نو د جمع په آخره کې ئې «گان» زیاتیږی.
۱،۵- اسمای «کدو، کندو، ماکو، تانکو» به علاوه نمودن «ان» هم در آخر جمع میشود.
۴،ب: په جمع کې ئې «ان» زیاتیږی: کدوان، کندوان، هندوان.
۶- اسمای بیگانه مستعمل در پښتو که اصلاً پښتو نه بوده و بالف مختوم باشد جمع آن به علاوه کردن «یان» در آخر تشکیل میگردد.
۳،ب: د نورو په آخر کې ئې «یان» زیاتیږی.
۲،۵- کلمات «شفتالو، زردالو کچالو» به حذف واو و زیادت «ان» در آخر هم جمع می نمایند.
۴،د: په جمع کې ئې «ان» زیاتیږی او «و» ئې غورځی، «اویږی»: کچالان، شفتالان زردالان.
۷- هر اسم مفرد مذکر ذیروح وعموم صفاتیکه در بین آن واو و یای ساکن آمده باشد اگر در مفرد مؤنث آن واو حذف گشته باشد در حین ساختن جمع واو و یای آن بالف تبدیل گردیده، در آخرش های خفی علاوه نموده جمع ساخته میشود.
۸- که د مفرد نوم او یا صفت وروستی توری صحیح ساکن توری وی او ترهغه د مخه معروف یا مجهول «و» وی، نو د جمع په صورت کې د دغه «و» پر ځای «الف» راځی او ترهغه د مخه توری پـه زور سره خوځیږی او وروستی ساکن توری هم پـه «زورکی» خوځیږی.
۸،الف: آنکه «صفاتیکه» جمع نداشته و درحالت افراد وجمع یکسان استعمال میشود
۱۶- ځینی صفتونه شته چې د مفرد او جمع دپاره یو راز استعمالیږی.
۹- اسم مفردیکه به های خفی و یا واو ملین مختوم باشد جمع آن به آوردن «ونه» در آخر تشکیل و های مذکور در حین جمع ساختن ساقط میگردد.
۶- که د مفرد نوم او صفت په آخره کې «زوره کی» وی نو جمع ئې دوه صورتونه لری :-
الف: په آخره کې ئې «ونه» زیاتیږی او د مفرد وروستی «زوره کی» پـه پیښ سره بدلیږی.
۹- استثنا: اسمای «لپوه، کارغه، مارغه، وښته» [۱] مستثنی شمرده شده و به «ان» جمع میشوند.
۶،ب: په آخره کې ئې «ان» زیاتیږی او د مفرد زوره کی په زور بدلیږی.
۱۰- اسمای دوحرفی و یك هجائی که ذیروح و یا مختص به ذیروح باشد باسکان حرف اول و علاوه کردن های خفی در آخر جمع میگردد.
۷- که د ساکښو دوه حرفی مفرد نوم او یا صفت وروستی

[۱] کارگه، مرغه، ورېښته «پ»

نوري صحيح حرف وي اودغه نوم او صفت بو سلپيل واري نو د جمع باصورت کې ئې لومړي نوري ساکن کيږي اوورو ستى تورى په زوره کې سره خوځيږي .

۲۱- همه اسماى غير ذيروح که مختوم به حرف صحيح باشد و جمع آن موافق مادهٔ «۷» ساخته نشود به زيادت علامت «ونه» در آخر جمع ميشوند و در بعضى اسما حروف امدادى نيز جهت تخفيف ساقط ميګردد .

۱۰- د بې ساشيانو نومونه چې په پاى کې ئې صحيح ساکن نوري وي، او د نيرو قاعدو له مخه ئې جمع نه وي شوي نو په آخر کې ئې «ونه» زياتيږي .

۱۲- تمام اسماى ذيروح و صفات مختص به ذيروح که به حرف صحيح منتها باشد عموماً به زيادت «ان» در آخر جمع ميشوند .

۹- د ساکښو او بوټو نومونه او صفتونه چې په آخره کې ئې صحيح نوري وي په جمع کې ئې «ان» زياتيږي .

۱۲، ب: بعضى پښتانه برخى از اعضاى حيوانات را به «ان» نيز جمع مينمايند چون: سوك، مټ، نوك، څټ، ام .

۹، ب، نوټ: په ځينو محاورو کې دا نومونه هم په «ان» جمع شوي دي: سوك، مټ، نوك، څټ، لم، خنډ .

۱۲، د: بعضى پښتانه برخى از اسماى مختوم به حرف صحيح را خواه ذيروح باشد يا غير ذيروح معماً چنين جمع ميکنند، که فتحهٔ ماقبل آخر آن را به زور کې تبديل نموده جمع ميسازند .

۱۱- ځينې داسې نومونه او صفتونه هم شته چې د ورو ستى نه مخکينى توري ئې په زور خوځيږي او په جمع کې دغه «زور» په «زوره کې» بدليږي په عين حال کې دغه کلمات د نهمې او لسمې قاعدې سره سم هم جمع کيدى شي .

* * *

۱- اسماى جنسى: تمام انواع اسماى جنسى که بهاى تأنيث و ياى مجهول مختوم نباشد اسماى جنسى مذکر بوده براى قليل و کثير، مفرد و جمع بيك صورت استعمال ګرديده و جمع آن ساخته نميشود .

۱۲- د جنس نومونه چې د تانيث اخښى په کښى نه وي د مذکر جمع ګڼل کيږي او په لږ او ډېر کې د مفرد حکم لاندې راځي .

۲- اسم فعلى يا مصدر در پښتو جمع نګرديده، و لفظ مفرد آن براى اقسام زياد آن فعل استعمال ميشود .

۱- تمام مصادر پښتو داراى حکم جمع مذکر بوده و همه افعال، صفات و روابط با آن بصورت جمع مذکر استعمال ميګردد . [ پښتو ګرامر ۱۶۶ نمبر مخ ] .

۱۳- ټول مصدرونه پخپل شکل د جمع حکم لري، لکه: وهل، خوړل، ليکل...

آن صفات عمومى اينکه به حرف صحيح مختوم بوده... براى مفرد و جمع مذکر يکسان استعمال مى يابد .

۱۶- ځينې صفتونه شته چې د مفرد او جمع دپاره يو راز استعماليږي .

زمانيکه خواسته باشيم ديګر امثال يك اسم خاص را در يك حکم با آن شريك سازيم در

آن وخت میتوانیم اسم خاص را بغرض عمومیت حکم و شمول امثال دیگر جمع نمائیم مثلاً:

رحمان بابا گوید :-

خوشحالان او دولتان می غلامان دی
زه رحمن په پښتو ژبه عالمګیر یم

مثال دیگر: په دې وطن کې ډېر میرویسان او محمودان نیر شوی دی .

۱۷- خاص نوم په ځینو خاصو وختونو کې جمع کېدی شي، هغه دادی چې تر یو حکم لاندې خو تنه راشي او یاخو تنه په یوه نامه وی لکه:-

خوشحالا او دولتا می غلامـــان دی
زه رحمان په پښتو ژبه عالمګیر یم

زموږ په هیواد کې ډېر میرویسان او محمودان اپر شوی .

۵- در اسمای صوت فقط جمع «دز، درز...» به الحاق «ونه» موجود بوده و جمع باقی اصوات استعمال نشده است .

۱۰، ۱۵، ۹۵ نوټ: د اصواتو هغه ډمونه چې د یوغږ نه حکایت کوی دهغو جمع د پورتنی قاعدې له مخه کیږی: ډزونه؛ درزونه .

* * *

دغه وه د تومورو دوو لیکنو مقایسه او نور قضاوت ئې و ښاغلو لوستونکو او د حق خداوندانو ته وربرېږدم، چې دوی به پورتنیو پـــرتلنه کې اختلاف وینی که تشابه، لږ ئې وینی او که ډېره او یا که ئې هیڅ نه یـکښې وینی . په هر ډول که خوزه دغه آرزو لرم چې د پښتو له باره په پښتنی اراده هغه کارونه وسی چې ورته ښایېږی او پښتنانه ضرورت ورته لری . یوه ژبه په مکررو لیکنو اویا خبرو سره چې هغه هم اکثراً څه اساس او مغز نه لری؛ نه پرمخ تللای سی او نه له نورو سره څه سیالی په کولای سی، بیله دې چې د نور پانګوالی سبب ئې سی .

---

# فریـــــــاد

خدایه ستا په رنګ جهان کې چې ودانې بنګلې دی
د معمار د لاس ننها کې د مزدور نـودې خولې دی

دا په بڼ کې چې ګلونه بهارونه ترې سازیږی
د باغوان د زړه په وینو آبیاری هـــومې غوړیږی

مګر واک د بوټیدو ئې به قسمت د بـــاغوان نه سته
د غریب سری تاوبې ستا پر محکمه آسمان نه سته

کندهاری «رشاد»

ښاغلی عبدالرازق «پالوال»



# (غمېدلي او غمولي)

را به څرګ سوي توري شپې
او به خړې را اوربېږي
د غريب له کنډوالو څخه
سوی کړزې ولاړېږي
د سېلاب کښتۍ ئې کور سو
که د پاڼه پر نړېږي
هسکه! څه دې بېښه سوي؟
چې ځانګو د وېر ځنګېږي

اوي کوچنی دی تال له تاله — که د رزق په دار ځړېږي

د غريبو په کېږدۍ کې، چې نه مړانده وي نه کراسته
شپه او ورځ لکه کښتۍ وي د طوفان پر اوږو ناسته

يا له پخه په ژړا دي — و ساړه نړی تـه رېږدي
ورته راسي ورتـه کښېني — ځني خوځي بيائې پرېږدي
له بوره ځاپه و پـل ته — پر چاودلـو پښو ور لېږدي
ځينې مځکې ته سر ولاړ سي — کړي ئې پورته بيائې کښېږدي

د غريب له ساړه آهه؛ سره وچـاوداله کاڼي
ونې هم به رېږدېدو سوي، ځني و رژېدې پاڼې

يا خوارږه د ماښام ناسته — هوسـانيان پېـدوي وزې
دوی خوارږه له مورة غږادی — و سترخان تـه وهي کړزې
د موږ نيا تـې خوله وتلې — وچـې شونډې تـه زلخوزې
خيال د خان د پښو بڼاديو — وهي دوی هر آن پر پېږي
غاښ چيچي او سر ښکوبنه — مخ په خاورو پوري موږي

مړه به سي ماړه به نه سي، نه به يې ژغ د خوښۍ واورو
څو د مرګ په چپلاخه، ئې خوله د که سي له خاورو

یا ونښ د ېګې نه راتول دي — په ژړا ئې څنې غواړي
مګر ډك ئې کړي په اوښکو — پر زړه دې کې سترګې دواړي
وسپوره ښانك نه ناست دي — یو سوګلی وهي بل ژاړي
ورور څنګیږي، خور زوګلیږي — مور ئې ګرځي په ولاړي
نه کښېني نه پرېوتای شي — وېر نیولې ده تر غاړي

دا څه ژوند څنګه دنیا ده، چې څوك وژي څوك ماره دي
مړه، زاړه ئې ښه یادیږي، ګناه کاره ئې واړه دي

یا ئې نه اري په ځان کي — بې کـالیه لـخ لـپړ دي
بې لفافې، بې برستنه — پر ښوي ښاك پاته لغړ دي
خاوري خلې بـر دوړیږي — مور دي ومري چې کـګړ دي
د خان زوي پاندي سپړیږي — د قسمت په خوا کې پړ دي
د عدم په لوسو ځوړند — اند ښنو پـري ایښی اوړ دي

که یاري ګوټه وربري کړه، لیري لیري امیدوانه
پر یارو به کله راسي، دا ښاخلي بې بیوندوانه

یا ئې ده نیاره په کور کي — اوي کوچنی ور نه نه ښکاري
ځکه خـه ور پېښه سوي — چې وهـي تـوله کو کاري
یو ناورین پاندي جوړ سوی — ژړ والـی ئـې لـه واري
کوم سر کوزي پر اوښتي — اړ والـی ئـې لـه لاري
ګډي ودي ئې پـه بډو — دي ور کړي د ژونـد چاري

پیغله اور بې وي پر بڼو، و زاړه نـه کښېنستای
پلار، بخښلي د دروز وي؛ یا به یور کی چا ابستلي

یا ئې نه لیده پـه سترګو — مـور په زړی کی ده ختلي
که ئې پیغلة خـرابه کي — و ارمـان تـه پـري وتلي
هم مـرغه ئې د سیمي له — پـوښ قـفـه الوتـلي
د وېـرجنو قـافلة ئې — د روازې تـه درپـدلي
نېك مرغـي ده د ځورانو — لـه پـښې څخه پړیـدلي

نو ئې مرګ دي مېلمه سوی، موراو خور ده یوره وراره
چې لوېدلي ده له لاسه؛ د اسمان د مخ هنداره

یا ناروغه پکښې غمخوار دی — د خراب ژوند له قیامه
بې دارو بې له دوا ئې — جوړ ځګېروی دی له وسواسه
وژی تبژی، پروت بې حسه — بې سر د بسترو او بې لباسه
هم پر حال د ساختو دی — د سپېرو خاورو له پاسه
بې د چا له دم او چو څخه — نور ئې څه نشته سی له لاسه

د غریب پر غم او خوږو ، بابې خواره نور څوك ملا وی؟
چې درمل نه د رنځورو ، طبیبان پاخپله غله وی

یا خو پروت پر تخته پاندی — دی نا ولسی ورته مری
نه ئې ګور او جنازه شته — ئې کفن نشته یو ټکړی
د یتیمو و ژړا نشته — را تېر نه سو کوم وګړی
بې ښځمنو بل څوك نه شته — چې تر ګوره ئې وای وړی
لا هیڅوك نه وای په ښار کې — ښځو خپله وای ښخ کړی

نور څه نه ښکاری له رازه ، بېله دې چې بې کسی ده
پېښه سوې ئې پر وصل ، و ابد نه پردېسی ده

له ختیځه او لویدیځه — څخه لپوان را غله په منځه
څوك له منځ کې څوك له سکه — را شیوه سوه و پکره غونډه
خپلوان نه وه ټول پردی وه — نش به قوم کی بوه څنډه
د غریب میراث به څه ؤ — بېله دې چې بوزی کونډه
له کوچنیانو ئې کړی بېله — بیا ئې کښېښوی پر بنده

دا مو ننګ دا سر لوړی ده ، چې ئې بولو پښتونواله
که لاډې دو که و نه مري ، نور دردمند نه بې پالواله!





# راغلی لیک

له کابل څخه

ګرانه ګرزنه !

ما ګړو ستاسې پیغام را ورساوه ، ماهم ستا خواهش په ځای کړ . یو مې غزل درا ستولی چې د قدیم او کلاسیک ادب شیوه ، رنګ او بوی لری . بل شعر چې «آشنا نه» لیکل شوی په پښتو کې نوی شعر بالهشی او دا ځکه چې مفهوم د لفظ په لحاظ او هم د شعری تعبیراتو په لحاظ ابتکاری دی . مګر بیدې لا نه یم پوه شوی چې دا راز اشعار به د لوستونکو تأیید لاس ته راوړی او که نه ؟!

دوه نوری می د خارجی لیکوالو نه را انتخاب کړی دی . البته له یوې ژبې نه بلې ژبې ته د شعر ترجمه کول ډېر ګران کار دی . ګمان کوم ما به دا کار ښه نه وی سر ته رسولی مګر ځکه چې دا کار په پښتو کې نه دی شوی ما شخصه ملا ور ته تړلې ده او که وخت بیا وموم خیال لرم د دې ترانو د ترجمو یو بشپړ منظوم کتاب برابر کړم مګر دا کار به هم د لوستونکو په استقبال پورې ډېر ارتباط ولری .

هیله ده چې په را تلونکو ختو کې زه ستاسې سره د یوې دائمی همکارۍ وعده درکړم خو نه په هم دا وظیفه لری چې زما د پېلو پېلو لیکنو په باره کې د خپلو او لوستونکو انتقادونه او نظریات ما ته ولیکی او را وانې ستوی . د زیاتو همکاریو او مرستو په هیله د «سلیمان لایق»

# ساقي ته

ساقي لاس وړه پیمانې ته چې ځنډیږي
د زمان قافله د رومــي ته درېږي

خو چې سترګې وازوو بهار به نه وي
ځواني خوږ شانې یو خوب دی او تیریږي

نه په عمر څه باور شته نه په حسن
خوبان خوشې خپل جمال ته غره کیږي

هغه لوښي چې کلال د زمان جوړ کړي
خامخا به د هغه په لاس ماتیږي

خام حریف د خم مدار ته منتظر دی
بد مستي د ناك به یانو کې اخپیږي

ساقي را کړه پیمانه پــروا نې مــکړه
څه به وهیږي چې څه کیږي هغه کیږي

د زاهد دانـــا کړدې او جفا ګاني
نش به میو علاجیږي او هیریږي

ژر مې مست کړه چې فضول عقل مې وژني
دا قضا مــــا له تنګه تنګه کیږي

## آشنـــــا ته

هېر کړه آشنا دا تېر عمرونه هېر کړه
باده در نیسه تېر غمونه هېر کړه

کاروان د عمر آشنا
ګله درېږي ګله صبر کوي

پیاله کړه یورنه چې فرصت کم دی
* * *

بیا به ځواني وي خو بهار به نه وي

یا به بهار وی د زړه یار به نه‌وی
زه له‌دې عمره آشنا

سخت اندیښمن یمه او ویره لرم
له‌دې ظالمه انتظار کم دی

* * *

مهلت د عمر یوه بریښنا ده بریښنا
یوه غنچه شان خندا ده خندا
پدې خندا کې آشنا
یورې لذت لری ګوره پام کوه
چې افسوسونه بیا ثمر نلری

* * *

که زاهدان پر سجاده ښه ښکاری
رندان بېخوده په باده ښه ښکاری
یوه ګړی عقل آشنا
عذاب عذاب دی ګوره پام کوه
راځه راځه چې لېونی شو سره

* * *

راځه راځه چې یو جهان کړو پیدا
څو لېونی او څو مستان کړو پیدا
سا رانه لاړ شو آشنا
هېر کړو دا واړه بندیزونه هېر کړو
په بد مستۍ کې څو ناری ووهو

* * *

زړه می سا را یسې ژړاوی کوی
ځما ټېر عمر نه ښېراوی کوی
راځه چې وزو آشنا

وبریږم لاړی د سا را بندی شی
جنون به ګرزی سرګردان رایسې





(ښاغلی رشاد)

# (د مرګ پیغام)

هغه زرکه وم روزلی د آزاد غره په لمن کی
نه می لومه وه لیدلی نه په فکر د دښمن کی

نا خبره له دزرانه را ښکاره ئي لمسون نه وو
د راغو بر خاورو لغښتم ما لیدلی بولتون نه وو

ما ویله تل به اوسم د همزولو په ټولیه کی
خوشالی به می غوځیږی د آزاد زړه په ځالی کی

طمې راوستم دانې نه هوس اوس کړم په لومه
حریت می اسارت شو ژوند می شو دقفس شومه

بیله شومه له خپل سیله نه همزولی نه وطن شته
اوس نیپېژمه قفس کی نه هاغر نه ها چمن شته

نه هغه خوږه اور شو ستا نه خبره په ښادی یم
واک می ورنیء له لاسه اوس د بل دلاس بندی یم

په تپش می وزر مات شی چی هوس د الوتو کړم
دخپل حق په جرم زندی شم چی نالښ درا وتو کړم

د ارمې طمې له لاسه را په پښو دا خواری شوه
چی می طوق دخپلی غاړی دا زندی د زنده‌ګی شوه

چی می ژوند دغره راباد شی ژړا کوکی غلبلی کړم
زما ژړا د بل فرحت شی بیدردی ذري کړم

مړه دمور په انس کی ښه وم د ذات زهیره الهوای
یا د دام په تار ځغه وای خوبه ژوند اسیره مړای

داڅه ژوند د بولتانه دی وزر نو به شوم قفس کی
زړه می وچاودی له ګرومه د آزاد غره په هوس کی
بزما نېږه شوه نیازمنو ! اوس به مرم په اسارت کی
د آزادو ژواندون ژوند دی مرګ ئي هم دی په عزت کی

## «انتقاد ....»

د ۱۱ مخ پاته

پر اوسـ‌ودي پسـ‌اندي هغه انتقادونـه چي د مخالفيـنو له خوا کېـدل باعث سول چي دده اکتشافات تـ‌وله نړۍ ته ښکاره کانـدي که چېري سالارانېري ، د نورو اميرانو په څېر کومه چوکۍ اشغال کړې وای زما په عقيده او سهي جهاني شهرت ئې لاس تـه نه ورتی ؛ ددې څخه ښکاره شوه چي حاسدانو او انتقاد کوونکو دده عظمت او شهرت خپور او ثابت کی .

همدا ډول گـرانت جنرال چي د امريـکا دازادۍ په وخت کي کوم فـوق‌العاده بـري وموند ، د ټولو اولږو افسرانو حسدئې ورته راوپاراوه ، چي په نتيجه کي ئې اوموږ په بندمحـکرم او هلته ئې دپاس سره شپې سبا کولې ، خو دده يوه بری دده نـوم تاريخ ته وسپاره او پرده وارو وارو تنقيد وده ته عظمت ور پـه پـرخه کـی .

او په اخر کي داسي ويـلای شو څوك چي پـر نااسو تنقيد کوي يا نااسو نقد کومو ناوړو امورو نسبت کوي دخوا بدیـه سبب مو مـه گرزوی ولی هغه څوك چي پر نااسو تنقيد کوي پـه ـ له دي چي سقاسو سقاينه په مخالفه لهجه سره کوي بل څه نه شو ورته ويلای .

## اگوست کنت او ...

دڅلرم مخ پاته

مرحله تېره کړه په پله دغی مرحلي څخه خورا مشـکله ده چي سړی دي په دم دتیاو جـکل مرحلي څخه و صافي علمي مرحلي ته راشيـوسی . [ البته دا خبري هم په خورا عمومي ډول سره بيا نيږي ] .

اوږدې خبرې چي د کـنت په باره کي وسوی او يا د اجتماعياتو دعلم څخه مو خوله وهله يو اڅی ددې دباره چي کـنت څه وائی او پخپله اجتماعيات څه شی دی؟ ددې خبرو د پوره معلومـات دباره دېر اوږ اوږ کـتابونه او بيانـونه سته چي کـه ئې وگورو ښه به په خبرسو .

## د تاريخ پلار

### چاته ويل کيږي

هېرودت چي د نـسري د مشهورو مورخينو او سياحينو څخه دی ؛ د يو مشهور تاريخ د تاليف له کبله دی د تاريخ پلار و بلل شو او دده نوم په همدغه لقب ژوندی پـاته شو .

هېرودت بابل ، مصر او فلسطين ته مسافرت وکی او دتناسخ عقيده ئې له هغه ځايه راواخسته دده د تولد تاريخ د ميلاد څخه پخوا د ۴۸۴ په حدودو کي ؤ او مرگ ئې په ۴۲۵ ق م کی وو .

مه غولېږه په بادامو دا بستې نه دي فتنې دي
د آزاد غره وچي شگې په زر وارد زړدې ښې دی
دا وصيت مې سبا يوسه د هـجـنو و اورشو ته
دژوندون بر دا گـ چي گرځي بايد گوري خپلو ښو ته
چي نېر نه وزي د دزره څو کودانو دپاسه دام دی
د صياد پلمهرو مينه غوليده دمرگ پيغام دی

# د علم النفس پېژندنه

## ( تعریف )

د مؤلفینو عادت پر دې باندې راغلی دی چې دوی د مخه تر دې چې د یو علم په باره کې دې خبرې شروع کړي غواړي چې وار د واره دې د هغه علم د ماهیت په خصوص کې یو عمومي مفکوره او سطحي پوهنه ور وسپاري او دا کار باید په ډول سره کوي چې تر هر څه لومړی تر د هغه علم په یو دقیق تعریف باندې اخته کیږي دا دی دره څرګندېږي چې تعریف تر هغو پورې دقیق او کامل کیږي څو چې جامع او مانع نه وي جامع دا معنی چې پر ټولو هغو موضوعاتو به دلالت کوي که څه هم اجمالي دلالت وي چې له دغه علمه سره اړه لري مانع دا معنی چې بل علم به نه په کښېوزي او نه به دغه تعریف باندې تطبیق کیږي که څه هم د اکثرو علومو د پاره د یوه دقیق تعریف پیدا کېده ډېر سخت کار دی مګر په زیاته بیا د «علم النفس» د پاره د یو جامع او مانع تعریف پیدا کېده ډېر ډېر مشکل او بلکل ډېر سخت دی او د تعریف له ناحیې څخه علم النفس تر نورو علومو پورې خوار دی، ځکه د دې علم علماؤ تر اوسه پورې یو داسې تعریف نه دی تسا کلی چې هغه دې د علم النفس پر مختلفو موضوعاتو او بېلو بېلو ناحیو باندې غېږ راو ګرځوي او پر خپلو ټولو مسایلو دې داسې شمول ولري چې نه دې خپل ځنې ونلي وي او نه دې پردي په کښېوتلي وي د دې کار دا نه کېدلو ځیني علتونه دا دي:-

۱- د نړۍ مظاهر او د ژوندانه حوادث مختلفې ناحیې لري او اکثره وخت داسې کیږي چې یو مظهر د بېلو بېلو علومو موضوع وي او له مختلفو ناحیو څخه یې تر څېړنې لاندې سي.

۲- دا خبره ده چې علم النفس له معنوي امورو څخه بحث کوي او هغه هم تر هغې اندازې پورې. ایله څو نه چې د دغو معنوي امورو آثار لیدل کیږي نو د دوی حقایق په پوره ډول سره نه سي پېژندل کېدای او نه دا ممکنه ده چې د دوی پر ټولو حدودو دې کامله احاطه وسي ځکه چې د انساني تجربو له لارې څخه لیري او پټ دي او که دغسې خبرې د علم النفس په تعریف کې راوړه سي هر-هرو به یو داسې تعریف ځیني جوړ سي چې مجهول به وي او مطلوب نتیجې ته به موږ نشي رسولای.

۳- د علم النفس مباحث ډېر سره وغزېده او په زیاته بیا دغه پراخېده د جاري ښېرې له سره څخه را شروع سوه او تر دې ځایه پورې راورسېده چې تو له بشري اعمال په دې حیث وڅېړي چې په څه شي یې مخ نیول کیږي او کوم سببونه دي چې و دې اعمالو ته سړي وادار کوي او د دوی پر علمي تعلیل باندې یې د دوو اساسي غرضو د پاره ګوتې پورې کړي چې هغه دا دي:-

۱- چې په دغو اعمالو باندې د مخه تر واقع کېدو خبر تیار اسي او هغه شیان زده سي چې په کړو سره یې بنائی دغه اعمال تقویه لي دا هغه وخت که ښه اعمال وي.

۲- بائي مخ ونيول سي کوم وخت که بد اعمال وي .

علم النفس غواړي چې د يو سړي عقلي حالات د خوب او د ويښتيا په دواړو وختو کې وڅېړي او د سړي نفسي وضعيت د ده پخپل کور کې او د معلم دا په مکتب کې او د شاګرد دا په کور او ښوونځي کې او د کاسب دا په کسب خانه او د کارېګر دا په کارخانه کې تر بيان لاندې ونيسي همدا ډول د سياست او دين، د قانون او تربيې په باره کې ږغيږي او د کښتو او اوړو اجتماعي ترلو په خصوص کې څېړې کوي او د مدني مظهرو او انساني تقايدو په شاؤ خوا کې څېړنې کوي لکه څنګه چې د عالي او داني حيوانانو پر سلوك باندې بحث کوي لکه څنګه چې د کوچنې نفسيات څېړي همدا شان د بالغ پر نفسيانو ږغيږي لکه څنګه چې د زيرکانو پر زړاکت او د عاقلانو پر عقليانو باندې څېړې کوي همدا ډول د ليونانو او باوله کسانو او کونه ذهنو انسانانو نفسيات تر څېړنې لاندې نيسي او يو علم چې پراخېده ئې ودې حد ته رسېدلی وي او مباحث ئې دغو ته غزېدلي وي د هغه سخته ده چې يو مختصر او جامع ومانع تعريف دې ورته پيدا سي، خو بيا هم په مختلفو زمانو کې فلاسفه ؤ د علم-النفس له تعريفه څخه منعه نده راوړي .

۱- هغه څوك چې لومړي ئې د علم النفس په تعريف خوله پوري کړېده بلکه په دې علم کې ئې دخبرو دروازه خلاصه کړېده او يو خاص نوم ئې ورته ټاکلی دی هغه ديونان پخواني فلاسفه دي پخواني کسانو د مسکولو-جياء يا سيکولوجي، يعني علم النفس نوم باندې ايښی دی او پر دغه نامه ئې له تعريفه څخه استغناء راوستلې وه ځکه ول دغه قدر بس ده چې دا (علم-النفس) دی مګر دوی د نفس ماهيت په يو علمي طريقه سره موږ ته ندی بيان کړي او دوی له دې څخه عاجز وه چې په يو داسې ډول دې د نفس، روح او عقل په منځ کې فرق وښيي چې تجربوي علم دی ور سره ومنسي، څرنګه چې دوی د علم النفس په تعريف کې د داسې قيد او قيود له زياتو بله څخه خوله نيولې وه چې هغه دې نو موږ دې علم په خاص ډول سره وښيي او دې علم مباحث دې د نفس او علم په يوه ناحيه کې محصور کړي نو ځکه د دوی تعريف د نورو عقلي علومو لکه علم المنطق د کتنپوتلو مخ نسوای ګرزولای .

دا خبره لا هم سته چې پخوانو دا ګمان کاوه چې حيوانات طبيعتاً له نفوسو او عقولو څخه خالي دي او په دې سبب ئې د علم النفس په مباحثو کې د يو عقلي حيوان د ژوند بحث نه داخلاوه نو په دې باب کې د دوی معلومات لږ وه او د علم له مخې څخه ئې کفايت نسه درلودی .

۲- نوی کسان هم داسې ندي چې تر پخوانو دې په دې باره کې کندري وي چې د دې علم و يوه رضائيت بخښه تعريف ته دې رسېدلي وي دوی لا ور خبره لا داده چې تراوسه پوري د يو اصلاحي تعريف پرتاکلو لا هم اتفاق ندی سره کړی بلکه پرڅو لارو باندې سره تللي دي ځېنې ئې داسې تعريفوي چې دا

«علم العقل» دی او صرف دغه غرض، خبره کوی او نور څه قید او شرط نه ور سره زیاتوی او د دوی مراد له دې خبرې څخه دا دی چې دا ښکاره کړی چې عقل او نفس سره یو شی دی.

مګر علم النفس دا نه خوښوی چې څوک دې «علم العقل» په نامه یاد دې مسمی کړی. ځکه له دې نامه څخه دا څرګندېږی چې داسی یو خاص ډول سامان شته او یا یوه ګوښې آله شته چې هغه خارجی وجود لری او د عقل په نامه یادېږی لکه څینو پخوانیو چې دا عقیده درلوده چې یو داسی شی شته چې هغه ځانته وجود لری او د نفس په نامه یادېږی کوم وخت چې له بدنه ووزی نو بدن مری او ادراک او حیات ځنې زائلیږی مګر خبره دا ده چې علم النفس کورټ د نفس او عقل د وجود په باره کی څېړنه نه کوی ځکه نو مروجی علم په دې سره اعتراف نه کړی چې نفس یا عقل د خارجی وجود څښتن دی په داسی ډول ممکنه ده چې تجربې دی لاندې سی او د دوی له سلوکه څخه دې هغه مهم قواعد او مبادی استنباط سی چې په دغه علم النفس کې ئې د تدوین شکل اخیستی دی بلکه علم النفس د مغزو او عصبی جهاز په وجود باندی اعتراف کوی او د معنوی اعمالو په باره کی چې عقلی اعمال بلل کېږی او د دوی د عصبی جهاز سره ښکاره علاقه لری نو علم النفس له مادی شیانو څخه بحث نه کوی بلکه هغه اعمال او آثار تر څېړنی لاندې نیسی چې عقلی اعمال او آثار دی بنا پر دې د علم النفس تعریف په دې ډول سره چې علم-العقل دی مقبول تعریف نه ګڼل کېږی.

«باقی لری»

|| لیکونکی نومیالی ||

# ډوډۍ

کله چې سترګی پرانیزو او که ئې رونې کو خو ژوند په حساب مو دا خبره وه نه چکه ولاړه ده چې ډوډۍ باید ولرو او ډوډۍ باید وخورو. نور حیاتی ضرورتونه ممکنه ده په څلورو پنځو ساعتو کې یو وار راسره مخامخ سی یا نباتی په هفته کې یو یلا ور سره مخامخ سو یا احتمال لری په کال کې یو وار یا اصلاً مخامخ سی یا امکان لری په ژوند کې یو بلا ور سره مخامخ سو لېکن د ډوډۍ هغه ضرورت دی چې د شو او روز په اندازه کې زمانه کې درې واره او هر وور سره مخامخ کېږو او که نوی ضرورت خو او په اکثرو ګړیو کې بر له بسی ور نه موجود دی.

انسان که پخپل تاریخ کی څه ترقی کړی وی نو هغه له دې ځایه څخه پیدا کېږی چې یوازی د طبیعت په ډوډۍ ئې اکتفاء نه ده کړې بلکه د ډوډۍ د تولید د پاره ئې پخپل لاس په ډېرو هغو ابعو ګوتې وهلی دی.

که څه هم ځینی پخوانی اشراقی فلاسفه وو خو پر ډوډۍ باندی د حیوانی ضرورت نوم ایښی وو او په دې سبب چې دوی انسان اشرف المخلوقات ګڼلو نو په دې شرمېده چې د انسان پر

حیوانی ضرورت پسې اندې وزغیږي، مګر مونږ ګرموي د بخوا فلاسفه وو، د پاچهانو په دربار کې دوده پر تیاره ور رسیده او دا د بل د لاس نیاري دوده داسې ستر ګې ور پورې کړي دي چې بو خو ئې هغه انسان نه لیدی چې ارزي بلا ارزل المخلوقات ځني جوړه کړی ؤ او بل داسې ورته ایسېده لکه دوده چې ګرد سره د ژوند موضوع نه وی نو ځکه دوی هر کله د اشرافی انسان د روحانی او ملکوتی صفتو په خیال بند بو کې تفکر نه زور ور کړی ؤ او دي نه ئې چورت نه راته چې د دوی ترمانیو رالاندې خلګ له اوږې کچول دي، او مړنی او آخیرنی موضوع ئې دوده ده. او نه هغه وزیر بو په فلاسفه ؤ نه چا دو پلای سوای چې دا انسان چې ناسی ئې هم د پر عالی بولی هغه په دغه حیوان کې سپور دی چې مهم ضرورت ئې دوده ده.

د بشری ژوند په لیکلیکه کې د انسانانو ترمنځ د دوده مسئله خورا د پر تاریخی حوادث اری، خو تر ګردو چې د سړي

زیاته توجه کشوی هغه دوده وېش دی. د دوده په وېش کې بو ازې د خپلواکو خلګو برخه زیاته ده او له دې څخه معلومېږي چې دا وېش تو همدومره ګړ بدی. د دې وېش له برکته تو هغه دی چې د چا ستر ماوی تر اندې پاسه منګر دوده په نیم نس او د بل بیا نس تر اندې پاسه منګر ستر با هیڅ نو کې. د دې وېش برکت دی چې په یوه کور کې څوک واڼی څه شی وخورم او څوک بیا واڼی په چاڼی وخورم. د دې وېش برکت دی چې یو ئې کټی او بل ئې ځنې ځتي. د دې وېش برکت دی چې د بل له اوزې څخه خوړل داسې ایسي لکه د مور شیدې. د دې وېش نتیجه ده چې بادار د خپلو ریو د حساب په وخت کې له مزدوره څخه یو بتی چې شل ؤ شل څو کېږي او هغه بې اختیاره ور ته واڼی دا ئې څلو بښت دوده. انهې دا چې د دې وېش له مزایاؤ څخه ده چې د یو مزیان د بل تکیه ژوند نو نه ئې په وجود راو ستلی دی. که ژوند د التفات شی وی نو دا خبره مو زبات بام ور اړوی چې بدې

وېش کې د خورا لږ و خلګو ګټه او د بېخی ډېرو خلګو تاوان دی. که انسان په رښتیا عاقل وی او کار و نه ئې باید عقلی جنبه واری نو نوری چاری به ئې بامعقولی وی یا نامعقولی خو دې کو نګه او دې وېش مننګه ئې له دواړو خوا څخه بو غټ نامعقولیت ګڼل کېږي. د دوده پیدا کېده په طبیعت کې آسانه دی ځکه څو نه چې کړی هغو نه ریپلای سی. دا زړه بېخی او ده او خواری کښې خلګ هم له خواری څخه نه نښتی نو که بو پلا د دوی عښتلی لاسو نه و آزادی خواری نه ور اېله سی دا زړه به په لږ وخت کې ګل ؤ ګلزار کړی. اما دا دې نامعقول او چتی وېش په شکنجه کې خبره و دې ځای ته را رسېدلی ده چې د خپل لاس حاصل بو نس دوده د یو عالم مشکلاتو او ستونزو نیو په پېچر تاب کې په خورا غیر اطمینانی د ول سره تر زر منته او منته لاندې د نورو د احتیاج او مهربانی په فضاء کې د خوف او رجاء په دنیا کې د بل د ور کو او ورا کړ زو او د اختیار

# د ایټالیې یو وفاداره او بدبخته عاشق

## په دری کاله بند محکوم شو

په دې سبب چې له هغې ښځې څخه ئې یوه مچه ونه اخیستوله چې دی د ۲٦ کالو راهیسې پرې مین وو نو د «کریمونا» محکمې درې کاله بند پر ورواښتی. دې بدبخته سړي وویل: «اقلاً دا یوه واقعي مچاوه، ځکه د مچې په وخت کې دې پرباس شو نو ما باندې په غاښ کړم» دا محکوم سړی د پنځوسو کالو زوړ دی او په ښه ښه بشاش او ځوان سړی ښکاره کېږي. دا ښځه چې دده د ټولو تکلیفونو موجب ګرځېدلې ده د ۴۳ کالو ده، چاغه او بشاشه ده. دری وار دواده ده یوه درود پر غاړه سره ولیدل چې دواړه هلته لمبېدله. هغه وخت دا د ۱٦ کالو وه او دی ۲۵ کلن وو.

دا ئې د محبت ابتداء وه اما یوازې ده له خوا څخه. له دغه وخته څخه ده ډېرې هیڅ نه دواهور کاوه او خپل محبت ئې هغې ته په اظهار رساوه اما هغې پده کې چورت نه واهه. په آخر کې ئې تر ۲٦ کاله یکطرفه محبت وروسته پر خپلو بازو ګانو جرئت وکې او په ډېره نرمۍ سره ئې دا پر خوله باندې مچ کړه خو دې په غاښ کړه د پولانې د ښځه به ګیلاس وویشتی او پر تندی ئې زخمي کېږي او وروسته ئې د صلاحیتداره مقامانو په لاس ورکې. د فقرې نتیجه داسې شوه: دوه کاله درې میاشتې د شهوت د طغیان په ګناه، او میاشتې په دې ګناه چې ښځې ته ئې ډېره زمانه تکلیف ورکړی دی او نور نو د محکمې د مصارفو په نسبت محکوم شو. خو دې وفاداره او بدبخته مین اوس ددې فتوی په مقابل کې مرافعه غوښتې ده.

له ایټالوی بولېټین څخه

---

په هوا کې، په ابو دوپ، د انس په خوزو، په مټو که ولاړ تر اوسه لا سی نو اوی موفقیت او عالیشانه کامیابی بلل کېږي.

که یو څو محدود غټ خیل، اشراف، مخور، خانان، رئیسان دنیاداران، ملکان، پیران، سوداګران له حسابه وباسو او پاهو ګاهې وخت د دوی د دردونو مسابقې په غفلت کې وانه چوي اورنو د بشریت پاته اولسونه هر کله په دې غوښتنه کې سره هم آوازه دی چې دردیه! دردیه! دردیه!.

رښتیا هم د دنیا له سره څخه تر اوسه پورې درد یو باالهمیته مسئله ده او په انساني نړۍ کې ئې هغه مبرم ضرورت وبولی چې انسان له موره څخه بیا تر ګوره پورې تر ټولو شیانو د مخه ورسره مخامخ دی او چې دا کار و نسی نور کار و نه خو کېدای نسی او که وسی نو بالکل بې وخته او بالکل بې ځایه دی نو ای خوارۍ کښېو انسانانو؛ عالمانو، سیاست مدارانو او شاعرانو که غم خوری د دردیه غم و خوری او په دې باب کې دیو معقول احساس فکرومنۍ پخپل ځان کې او عملي ئې کړی په جهان کې!



# نومیالي پوهان

د ښاغلي «م، ع» لیکنه

## شکسپیر

په اروپا کې پنځلسمه او شپاړسمه پېړۍ چې طلائي دوره یادېږي ځکه په دغه وخت کې د اروپا په ټولو اجتماعي او علمي موسساتو کې یو نوی روح په حرکت کښېوزی او له دې سره سم پخوانی عادات او معتقدات چې د عصري تحول مخه ئې نیوله یو دم له منځه تلي او خپل ځای د علم او هنر و نوي جریان ته پرېږدي .

په دغه وخت کې د ادبیاتو په برخه کې چې کوم لوی تحول راغلی و هغه په خاص ډول په انګلستان پورې ربط پیدا کوي او په انګلستان کې چې دې نهضت ته کوم چا ډېره ښکلا ورکړې ده نو هغه یوازې د انګلیسي ادبیاتو پلار شکسپیر دی .

شکسپیر په داسې وخت کې میدان ته راغی چې د منځنیو پېړیو توري پردې لا خپرې وې د چې کله ئې کتنو ته لاس واچاوه نو د خپل ماحول او محیط له تاثیر څخه ئې و نه کړای شوای چې ځان وباسي، نو لومړني اثار ئې ځینې هغه د تراجیدي ډرامې دي چې د پخوانیو مذهبي لیکوالو قرباني شوې، خو کله چې د لومړۍ الیزابیتې په خاصه توجه د بریتانیې علمي ټولنې مخ پر انکشاف روانې شوې، نو شکسپیر ته هم زمینه مساعده شوه چې په نوي ابتکاراتو لاس پورې کړي هغه وخت چې دی د لومړۍ الیزابیتې په دربار کې د یو نومیالي پوهاند او زبردسته شاعر په حیث معرفي شو، نو هغې نوازش دی دې ته وګماره چې باید خپل کمال په تام استعداد ثابت کړي .

شکسپیر د ډرامو لیکنې ته لاس واچاوه او هغه شیوه چې په دې فن کې تر ده د مخه نورو لیکوالو اخیستې وه له هغې څخه ئې مخ راوګرزاوه او په دې مقصد چې باید د انګلیس د ملت روحیه وروزي نو د زړو داستانو او تاریخي قصو څخه ئې ځینې ډرامو ته جوړې کړې مخصوصاً کله چې د تراوا کمنۍ په مخ کې د هغو تمثیل وشو، نو هغې اعتراف وکړ چې اوس د انګلستان امپراطوري کولای سي چې پر نړۍ زورونه خپاره کړي . شکسپیر که څه هم تر ډېره ځایه په خپله لیکنه کې توري لارې اخیستې دي خو په وروستنه کې ودې حقیقت ته

رسېدلي دي چې ښه ليکنه هغه ده چې له واقعيت څخه د باندې نه وي .

د شکسپير د مشهورو دارامو څخه د «جولوس سيزار، کاريولانس- انتوني او کلوپاتره» د درامو قصې د پلوتارخ له تاريخ څخه اخيستل سوي.

د «روميو او جوليت» درام ئې د يوه ايټالياني ليکوال «باندللو» له داستان څخه اقتباس کړېدی .

د شکسپير په درامو کې هغه وخت د مهمات درام د پر معروفو او زړه پره وخته پوري به د ترېه باهر کوټ از برخه کي نه شپلندي خوړه، د «کينګ لير» درام تراوسه چې زړدي پېړېه لاهم د پر وخت پر نه پر سوی زوړ والي ئې ندی قبول کړی .

د کينګ لير تر له برخي پداسې صورت جوړ سوی چې ښائي د زړګونو کلو څخه وروسته دي هم انسانانو نه ښکاره و نه ايسي ئې سره ادي چې د بشري جرامعو نو بو نحو لانو اوي خبري منځ ته راوړي دي او د انسانانو اخلاق، عادات، ارزوګاني او مقاصد تغير کړېدی خو د شکسپير هغه شهکار چې پدي درام کي عملي سوی داسې معلوميږي لکه شکسپير چې ئې زموږ په زمانه کي راسره يو ځای دي او زموږ د ذوق پر اساس ئې درام رانه جوړ کړېدی

داځکه چې شکسپير د کينګ لير په درام کي د انسانانو پر طبيعت د واقعيت له مخې ژغيږي او د جوامعو د ژوند او جريانانو اساسي علل پداسې صورت بيانوي چې يوه منظره ئې هم له خپل اصل واقعيت څخه نه د باندې کېږي

شکسپير چې څومره معروف شخصيت دی ژوند ئې هم په ډېر خوشحالۍ او ابرومندۍ تېر سوېدی دی ۱۶۱۶ کال د مۍ په مياشت کي مړ سوېدی .

د شکسپير يو ودو کي اثر.

## «د مرګ نغمه»

کله چې زه مړ سم، د مخه تر هغه وخت چې د ناقوس شوم او تريخ آواز زما پر سر وژغيږلي او نړۍ ته دا پيغام ورکړي



چې يو موجود داغمجنه نړۍ پرېښوده .

هغه وخت چې زما بدن د نورو خاورو په زړه کي د ګور له څنجيو سره محشور شي نو تاسي زما پر مرګ مه ژاړۍ حتی هغه وخت چې تاسي زما دا اشعار اولۍ د هغو لاسو يادونه مه کوۍ چې دا اشعار ئې ليکلي دي..

ولې زه تاسي دومره دوست لرم چې تاسي ما هېر کي ... ولې چې ستاسي ښکلې زړونه زما له ياده څخه خواشيني نه سي .

په هغه وخت کي چې زه د مځکي په غېږ کي خاوري سوی يم او ستاسي سترګي زما پر دې اشعارو ومښلې زما نوم مه يادوۍ .... پرېږدې چې ستاسي هغه محبت چې زما سره ئې لرۍ زما د ژوند سره يو ځای وياې نه ورسيږي چې نړۍ ستاسي له شکوې څخه خبره نشي او پسله زما له مرګه زما نوم ستاسي سره مسخره ونکړي .

ښاغلی عبدالعزيز [فقيري]

# پښتو او پښتون

پښتو د يوه ملت ژبې نوم دی چې د غه ملت ته او د همدغه پښتو او پښتونوالۍ په علت پښتون وايه سي . پښتو ژبه د تاريخ او فيلالوژۍ له مخې د ډېرو زړو ژبو سره په قدامت کې قديمه، او په منبع کې اشتراک لري، چې د دې خبرې مصداق زموږ د ويدانو او مشرانو آثار او اېښکې دي .

پښتو نه يوازې يوې ژبې ته بلکه د يوه ملت او آزاد قام و خپلو اخلاقو، مکرم او مقدس صفتونو ته هم وائي . پښتانه غيرت پر عهد، وفا، رښتيا ويل او د ننګ او ناموس ساتنه پښتو بولي .

د پښتو تاريخ، ادب، عنعنات او نور مميزات چې د يوه آزاد ملت شرايط او لوازم بلل کېږي ډېر د غور وړ، او مطالعه ئې ضروري خبره بلل کېږي، دوی د ډېرو ظالمانو او خپلو لويو دښمنانو سره مخامخ شوي دي . د چنګېز، اورنګزيب او نورو غونډی بې انصافه خلکو سره په بلا اخته شوي دي، مګر دوی هيڅ کله تر خپلې پښتو او پښتونوالۍ نه دي ورتېر شوي او د دښمن په خپلو ځانو او فريب ئې ځان نه دی غولولی . دوی آزاد ملت بلل کېده او مشرانو ئې ويل :-

د پښتون په ننګ مې وتړله توره
ننګيالی د زمانې خوشال خټک يم

پښتون ملت داسې سياسي او جغرافيائي موقعيت لري چې که د دې ملت پر ځای بل کم قام او ملت پروت وای او س به ئې چا نه تاريخ او نه به ئې بل کم خصوصيت ليدلی وای . د دې ملت هيڅ کله دښمن دې ته بريالی نه دی چې د دوی پر مقدساتو او ملي مميزاتو باندې تېری وکړي . دوی پښتانه وه او ځان ئې په پښتنې غيرت او مېړانې ساتلی او اوس چې پښتون ملت نن ورځ دا او سني علومو او فنونو څخه په ډېره اندازه برخه نه لري ځان ته يو مخصوص علت او سبب لري .

همغه وخت چې د استعمار لاسونه د شرق پر لويو او وړو سيمو او لويه برخه ئې د استعمار يوه او په لاس ورغله، نو طبيعي ده چې استعمار والاو کوښښ کاوه چې خپلې مستعمرې او حتی د هغو ګاونډي ملل په غفلت او ناپوهي کې وساتي، چې له همدې سببه نن ورځ په ټول شرق کې د استعمار پر مخالفت او ملي آزاد پېرغونه ورپېدل، او اکثره ملتونه د خپل سياسي، اقتصادي او نورو آزاديو مجاهدې کوي او دغه دی، چې پښتون ملت هم د خپلو ګاونډيو ممالکو سره په دې لار کې مرسته کوي او غواړي چې خپل عملي او فني نواقص اصلاح، د خپلې ژبې تاريخ او ملي مميزاتو په رڼا ته کېدو کې زيار وباسي .

د پښتو او پښتونوالۍ خدمت څرنګه چې بعضي خلک تصور کوي کمه رسمي او تشريفاتي جنبه نه لري، بلکه د پښتو او پښتونوالۍ د پاره خدمت د هر

پښتون وجداني او ملي وظيفه ده او هر پښتون چې ننګ او کار کوي په هغه کې به پښتني او ملي غايه لري. پښتانه عالمان په پوهنتونو او پوهنځيو کې ليک او لوست کوي، پښتانه عسکر د پښتنو غيرت او ناموس د ساتنې دپاره عسکري شريفه وظيفه پر ځاى کوي، تجار د فن او کسب خاوندان ټول د همدې مشترکې غايې دپاره کار کوي پښتانه دا عقيده لري چې خداى دې نه کوي که پښتو او پښتون-والي ته کم زيان ور ورسيږي هغه دوى ته زيان او د دوى د محوه کېدو دپاره علت او سبب باله شي او پښتانه کوښښ کوي چې پښتو او پښتونواله مخته ولاړه شي.

فقط يو شى چې اوس پښتانه هغه ته ډير اړ او محتاج دى هغه د پښتو عملي کېدل او د هغې په هر سمت پښتانه پوهول دي، موږ ټول پښتانه نه مجبوريو چې انګليسي، فرانسوي او جاپاني او نورې عامې ژبې دې زده کوي بلکه پښتانه عالمي مجبور دي

• باقي په ۳٤ مخ کې •



# د سپوږمۍ په باره کې

## ځينې تحقيقات

د شوروي اتحاد کوزميك توغندي چې د اوږدې مودې لپاره د سپوږمۍ کرې ته ورسېده او د نړۍ ډېرو علمي دستګاو د هغه رسېدل تصديق کړه، او بيا ورپسې امريکائي پوهانو هم څو توغندي هغې خواته وروېشتل چې ځينې ئې راولوېدل او د ځينو څخه ئې د فضا په تحقيقاتو کې پوره کار واخستل شو.

په تېر کال کې بيا د شوروي-اتحاد او امريکا د فضائي تحقيقاتو ادارو کوښښ وکړ چې ښه زيات د خپلو معلوماتو لمن لاپسې پراخه کړي او يو شمېر راکټونه د فضا په لوړه برخه کې په دې مقصد والوزول شوي او د هغو ځايو له څرنګوالي څخه ئې مخکې ته اطلاع راکوله.

په تېرو کلو کې د سپوږمۍ د کرې په باره کې د بشريت لوى موفقيت دا وو چې د هغې کرې د شا په مخ څخه عکسونه را کښتو په ذريعه مځکې ته را مخابره شوه او هغه فرضيې چې د سپوږمۍ په باره کې د علماو له خوا اېښودل شوې وې تقريباً تثبيت شوې ددې نوي تحقيقاتو څخه نو ښه معلومه شوه چې د سپوږمۍ کره له مځکې څخه په ۲۳۸ زره ميله ليرې فاصله کې واقع ده، چې د عادي جټ الوتکې په وسيله ٤ کاله په کار دي چې هلته ورسېږو. که فرضاً د سپوږمۍ کره زموږ بر سر په ۱۰۰۰ ميله مسافه کې واقع

وای توصيف کړې په د آسمان نيم مخ زموږ څخه پټ کړی وای. په سپوږمۍ کې يوه سلسله غرونه واقع دي چې اکثر ئې د ځنځير په دول سره پيچل شوي او تر ۱۲۰ ميلو پورې ئې يو محيط خپل په غېږ کې نيولی دی. د دې غرو ترټولو اوږدوالی ۶۰۰۰ فوټو ته رسيږي. په سپوږمۍ کې اوبه او هوا نشته نو ځکه پوره سکوت حکمفرما دی او هيڅ ږغ نه اورېدل کېږي، د ماښام له خوا د سپوږمۍ په کره کې د اسمان منظره ډېره شاعرانه وي تول ستوري ډېر روڼ او ښخ ولاړ وي د مځکې کره په ډېر غټوالي لکه د سپينو زرو يو کينډ ځليږي.

په سپوږمۍ کې ځکه چې هوا نشته نو د جاذبې قوه هم تغير ده او هغه درونډوالي چې په مځکه کې ۸۰ پونډه وي د سپوږمۍ په کره کې به ۱۵ پونډونه ورسيږي او د همدغې هوا د نه موجود په نسبت کله چې ورځ سی د لمر حرارت دومره زيات وي چې د مځکې د استوائي مناطقو ګرمي هم ترلږ ده او بيا چې کله شپه سي هوا يو دم دومره يخه سي چې د قطب يخي هم برتود وي.

د سپوږمۍ پر کره اتمسفير نشته نو ځکه اسماني شهابونه چې هر ماښام ئې موږ په اسمان کې وينو د سپوږمۍ په کره کې په مستقيم دول مښلي او يو په بل پسې د اسماني اورني ډېرو باران پکښې اوري.

د سپوږمۍ اکثر غرونه اورپاشونکي دي، او يو خطرناکه منظره ئې تشکيل کړې وي دا هغه تحقيقات دي چې تر اوسه د سپوږمۍ د کرې په باره کې په نوي وسايلو د بشر په لاس کښېوتلي دي او ښائي چې په راتلونکي وخت کې په نوي تحقيقات په دې لار کې نور لا هم روښانه کړي.

د غروال ليکنه او ترجمه

## پښتو او ...

« د ۳۳م مخ پاته »

چې ننني علوم او فنون په خپله خوږه او مستعده ژبه راواړوي او راتلونکي نسل د نورو ژبو له احتياج څخه خلاص کړي. دا چې څوك پر خپله ژبه، تاريخ او ملي جذباتو څه ايکي او د هغو د تحقيق په لاره کې زحمت کاږي دا د احساساتو غليان او تعصب نه دی بلکه د داسې خلګو تول زحمات د تحسين او تمجيد ور دي او بايد هر کله د دوی سره موافقه حاصله سي.

پښتانه دي ودې ته متوجه وي چې خدای دي نه کوي که د پښتانه څخه پښتو او پښتونواله ولاړه، نو به بېله غلامی او مړيتوبه بل هيڅ صفت ورپاته نسي او نه به ئې څوك نوم په نومو کې اخلي، نو پښتو پښتون او پښتونواله د پښتنو د ژوند او مرګ مسئله ده.

له مینز وی فرام کیف توسکای سکریپر څخه — مترجم عبدالله [لائي] د ادبیاتو محصل

# د کلتور آغاز

ارغونیو یونانیانو سوچ واهه چې تاریخ دوراني دی او تکرار بیږي. لکه یوه نقطه چې پر یوه څرخ باندې واقع وي او یو هر دور کې خپل اوملي حالت ته راځي. همدارنګه یوه پېښه چې یو وار پېښه شوې دی بیا، بیا په همهاغه پخواني شکل پېښېدونکې ده. لیکن ورسته فیلسوفانو زیارونه کېښ او ثابته ئې کړه چې تاریخ ارتقائي شکل لري. که څه هم پېښې داسې ښکاري چې ځان تکراروي، خو تل مخ وراندې خوا ته تمایل او تنګ شته، یعنې هر څو مره چې انسان پوهه حاصله کړي هغو مره ئې پر خپل محیط لاس بر کېږي او تر خپل کنټرول لاندې ئې راولي.

انتروپولوجستان (انسان پېژندونکي) هم عقیده لري چې د بشر د ژوندانه په سیر کې پرمختګ او شته. اثار او نښې ښیي چې بشر په ناڅاپه جنبشونو کې وړاندې تللی دی ستړي شوي دي او کښېنستلي دي چې خپله ساه ونیسي او دمه ئې ونیسي. او دمه ئې ونیسي. او دمه ئې اتردې چې بل ګام واخلي، د هغو تحولاتو سره چې د نوي موفقیتونو په اثر مخ ته راغلي دي توافق وکړي.

کله چې په کوم نوي عصر په کلتور ګډ شو، فرضاً یوه نوې مفکوره یوه نوې اختراع او ایجاد کار ده کړو نوې لارې د مخته راغلي او وګړي مجبور وو چې د دې لپاره چې د نوو متودونو سره توافق وکړای شي د خپل ژوندانه ځینې زړې لارې بدلې او واړوي. همدارنګه دې نوو عناصرو په یولړ نوي امکانات د راتلونکي پرمختګ لپاره پرانیستل. رښتیا هم که نوی عنصر ډېر مهم وي او دو ګړو پر ژوند زوره اغیزه وکړي، د ژوند زاړه دودونه او لارې ژر اوړي او د بدلون تول انواع په یوه لنډه موده کې صورت نیسي. ورو سته چې د کلتور مختلفو برخو یو له بله توافق وکړ ژوند له تشویشي حالة څخه کراریږي او د یو څه مودې لپاره په یو لېږ څه بدلون مخ ته ځي.

انتروپولوجستانو دا ناڅاپه مخ وړاندې جنبشونه (کلتوري تحولات) بللي دي.

ښائي ډېر شیان پېدا دي چې د خلکو پر ورځني ژوند اغیزه وکړي او یو څه بدلون پکښې پېښ کړي هغه ته راشي لکه یوه نوې لوبه او یا یو نوی نظم په شاعرۍ کې، په ډېر لږ بدلون او اغیزه د کلتور برخه ګرځي.

اما ډېر مهم شیان هغه دي چې د وګړو د ژوندانه پر دود او د هغوی د ارتیاوو په لېږي کولو کې مستقیمه اغیزه واري.

د انسان په ټول تاریخ کې درې اساسي تحولات پېښ شوي او هر یو ئې د ما بقي کلتور په ارمیم سره تعقیب شوي دي. لومړی اساسي تحول هغه وخت مخ ته راغي چې زموږ ډېر لېري نیکونو زده کړه چې افزار او ور څرنګه

استعمال کړی چی بدې وسیله سره ئې پر خپل محیط بوخه لاس بر شو او تر خپل کنترول لاندی ئې راووست دا داسی موفقیت ؤ چی بېله انسانه بل هیڅ ژوندی موجود دو لاس ته نه ؤ راوستلی. درهم اساسی تحول هغه وخت پېښ شو چی وګړو زده کړه چی ددې پر ځای چی لا لهانده په خودرو به نباتاتو او مېوو بسې وکړ ځی بخپله حبوبات او نباتات وکړی، او یا سرګردانه په ښکار بسې وکړ ځی، بخپله ژوی او څاروی اهلی او کورنی کړی. د کرهڼی په منځ ته راتلو سره ډېر تحولات او پرمختګونه پېښ شول خو د بشر په ډېرو برخو کی دمځکو کرهڼه او د څارویو نسل ګیری په ډېر لږ بدلون پر مخ تله چی دریم اساسی تحول پېښ شو، دا بدلون ددې کشف په اثر چی څرنګه قوه له حرارت نه پهلاس راوړه شی او څرنګه مسایل په علمی ډول حل کړه شی، منځ ته راغی. دافزارو او اوزار استعمال دومره ارغونی دی چی موږ ئې دمنځ ته راتلو په باره کی په یقینی ډول ښکاره او واضح معلومات نه لرو

لیکن دومره ویلای شو چی دا دواړه دانسان دلاس شیان دی. بېله انسانه بل هیڅ ژوی د اور استعمال ندی زده کړی. په حقیقت کی ټول ژوی ماسیوا له هغوی نه کوم چی کورنی دی له اوره ډېر بېرېږی او څوچی ئې وس کېږی ځان ایری څخه ساتی. بېله انسانه بل هیڅ ژوی کوم افزار ندی جوړ کړی، بیائی اونی بیزو ګانی بوارګی او با بوډېره چی پرمځکه ور نه ژدې پر نه وی رابورته کړی او د یوې آلې په ډول ئې استعمال کړی اما دانده پېښه شوې چی د بلی بلا داستعمال لپاره ئې وساتی او کله چی ورته احتیاج ولری جوړه ئې کړی. یوازی انسان کولای شی چی د ډېر اندېښنه وی او د آینده لپاره بلان جوړ کړی او کار و کړی.

دانسان نیکو نو دمخه نږدې چی اور بلول زده کړی، دا ئې زده کړی ؤ چی اور څرنګه استعمال کړی او بل ئې وساتی. دوی لومړی وار اور له یوې ونی څخه چی تکه بر اوېدلی، اولګېدلی وه او یا ئې د ځنګله له ونو څخه چی د باد او طوفان په واسطه سره مرښل شوی وی او خود بخود ئې اور اخیستی ؤ په لاس راووست. دریې دا اور بل وساته او حتی کله چی به له یوه ځایه څخه و بل ځای ته کډه کېدل یو لګېدلی لرګی او یا نیمسوز به ئې له ځانه سره وړه. که به ئې چېری اور مړ شو د ګاونډیانو څخه به ئې بوراوه. دا اور بورول تراوسه پوری په کلیوالو او کېښتګرو وګړو کی یو عام او معمولی شی دی.

او مړی سړی کوم چی دا ئې کشف کړه چی هغه حرارت چی د دوو شیانو له موښلو نه حاصلیږی کولای شی چی نازک شیان وسوځی او ولګوی، په رښتیا سره یو نابغه ؤ او د بشر د پرمختګ او ترقی ته ئې ډېر خدمت کړیدی.

ارغونیو انسانانو بخپله لاس جوړه کړی اور ئې د بکړیه (سنګ چقماق) او فولاد له وهلو او ضربت نه په لاس راووست اور دانسان په پرمختګ او ژوند ځانه کو ډېر غټ رول لوبولی دی. انسان د اور په مرسته وکولای سوای چی خپل ځان او ځای تود وساتی. او انسان نه

توان او قدرت ور کړ چې و
سرو ځایونو او اقلیمونو ته ولاړ
شي او سفر وکړي. داور ځلاند
لمبه په شپه کې درنده ګان د
انسان له مینې او هستوګنې
ځای څخه لیرې او ګرځنده وسائل
ځکه چې درنده ګان له اور نه
ډېر بېرېږي او ځان ترې ځنې
ساتي. انسان وکولای سوای
چې داور په مرسته ارګي وسوځي
او په مطلوب شکل سره ئې
وادوي. تر ننه ورځې پورې
ځینې قبایل چې فلزي افزار او
لوښي نلري داور سیځلو په طریقه
کښتۍ، دارګیو کاسې او لوښي
او نور شیان جوړوي.

تردې ټولو نه مهمه داده چې
اور دانسان دخوراکي ذخیره
او تهیه بېخي ډېره کړه. کله څه
هم اور و غوښو خوړونکو
ښکاریانو ته کوم مهم او ضروري
شی ندی ځکه چې هر ډول غوښې
اومې خوړلی کېدای شي، او د
غوښو پخلنګ تر ډېره حده د
ذایقې مسئله ده او اوس هم ډېر
وګړي شته چې غوښې اومې
خوري. لیکن اومې غوښې ژر
ورستېږي او خرابېږي حال
داچې اور وهلې او وچې غوښې

کېدای شي چې د هغو ورځو
لپاره کوم چې ښکاریان خالي
لاس له ښکاره کورته راشي
وسائل شي او استعمال ئې کړي.
همدارنګه د ترکاریو او سبزی-
جاتو په باب کې هم، پخلې یو
لوی بدلون راوست. اګرچې
ځینې خودرویه مېوې او ترکا-
رېې اومې خوړلې کېدای شي
لیکن اکثره حبوبات او پخ-
ولنکې ترکارۍ کله چېرې
اومه وخوړل شي بدهضمي
پیښوي او سړی ناروغه کوي.
نو کوم وخت چې انسان دا کشف
کړه چې کله چېرې دا اومه خواړه
پر اور پاخه شي، پاسته او
خوندور کېږي، پسه پراخه
پیمانه ئې د خپلې خوراکي و
پروګرام او ذخیرې ته پراختیا
ورکړه.

ډېره چې دانسان د ژوند له
پاره ډېره مهمه او ضروري ماده
ده پیله اوره په لاس نشي راتللای.
دا یو علمي حقیقت دی چې د
نفوس ډېرښت دخوراکي موادو
په ذخیره او تدارکاتو پورې
مربوط او تړلی دی. یوه کورنۍ
نش دومره کوچنیان روزلای
شي چې خوراکه ور کولای شي.

کوم وخت چې خوراکه لږ پېږي
غربیان او ډېروزلي وګړي د
خوراکي دنه درلودلو له کبله
اکثره هلاك کېږي او مري.
هغه وخت چې انسان به خودرویه
مېوو او ترکاریو او یا په ښکار
سره چلاوا ګذاره کوله، نوه
او به کورنۍ ئې نشوه روزلای
لیکن کوم وخت چې ئې د
خوراکي موادو ګدامونه او
ذخیرې درلودلې نو ئې ډېر
کوچنیان وروزلای شوای چې
ورو ورو د انسانانو کورنۍ
د مځکې پرمخ خپرې او ډېر
وطنونه یې ودك شول. افزارونه
نه بېرواخي انسان ته قدرت
ور کړ چې د خوراکي موادو
ذخیره د پخ اروېکو ترکاریو
د ښکرولو او یا د ژوو د ښکار
کولو له لارې ډېره کړي بلکه
له درنده ګانو او دارونکو ژوو
څخه ئې هم وساته او د آسودګۍ
او آرامۍ ښه زمینه ئې ور برابره
کړه. دافزارونو استعمال هم
د اور د استعمال په شان ډېر
ارغوني دی او حتی ډېر ابتدائي
انسانانو هم پدې پوهېدل چې یو
پندې سرې ارګي د کوټک په
شان او یا پواروزد تېره څو کې

ارګي د نېزې په شان استعمال کړي او یوه تېره څنډه د ډبرې د ښیانو د پرېکولو او غوڅولو لپاره په کار یوسي .

ګله چې به ابتدائي انسان وغوښته چې له ډبرې څخه تبر جوړ کړي نو به ئې د ګرانیت یوه ګلکه ډبره راواخیسته او د بلې ډبرې سره به ئې وهله چې په هره ضربه کې به ئې یوه وړه ټوټه ځني بېلوله تر څو چې به ئې ډبره مطلوب شکل ته راوسته دې ډول آلې د ډېر مهارت نه غوښت لېکن ګله چې به وغوښته چې یو ښه ښوی او صیقلي تبر جوړ کړي نو به ئې د بلې ډبرې سره سولوه او په نتیجه کې به ئې ښکلي تبر په لاس راووست .

څرنګه چې لرغوني انسانان تل په کوچ او حرکت کې ؤ نو ئې دا مناسبه نه ګڼله چې یو نیمګړی او ناجوړ شوی توری (افزار) له ځانه سره نقل کړي . ځکه نو دې ډول سنګ کاری تر هغو پورې چې انسانانو د غلو او حبوباتو کرل زده نه کړه عامه نشوله . لېکن کوم وخت چې دوی ځائي شول و ئې کولای سوای چې خپل نیمګړی توری او افزار کوم وخت چې فرصت ولري او با ئې زده وي راواخلي او کار پر و کړي تر څو چې مکمل او روغ شي .

د سنګ کاری بل تکنیک چې ابتدائي وګړو به د نېزو او چاقوګانو په جوړولو کې په کار وړ دا ؤ چې د نېزې د څوکې د جوړولو لپاره به ئې یوه اوږده نرۍ او تېره ډبره راواخیستله او هغه به ئې ښه ښویه او ښه تېره کړه او د هغو کې او یا د لرګي په سر کې به ئې ور کړه اوس هم موږ یو مخ د یوه لرګي په سر کې تلک وهلای شو او بدغه بڼه ئې استعمالولای شو . دا تکنیک تقریباً تل زره کاله د مخه تر هغه چې انسان د حبوباتو او غلو کرل زده کړي اختراع شوی ؤ . سره له دې چې انسانان د اور په استعمال او د ساده آلاتو په جوړولو پوهېدل، خو ډېر لږ عمر ئې دراود.

لرغوني انسان کومه دارائي او د خوراکي موادو ذخیره نه درلوده چې د ځانه سره ئې حمل کړي . ده به خودرویه مېوې ترکاري او نباتات ټولول بېله دې چې د هغوی د کرلو په فکر کې شي. ده به وحشي حیوانات چې لکه ده غوندې آزاد ؤ ښکار کول بېله دې چې د هغوی د کورني او اهلي کولو په فکر کې شي او د خپلې کورنۍ غړي ئې و ګرځوي دا ځکه چې دی خلاصه ښه ؤ او تل به په نورو ځایونو او وطنونو پسې چې هلته به ښکار او خودرویه مېوې او نباتات ډېر موندل کېدل په هڅه او پلټنه کې ؤ .

که څه هم د طبیعت متداوم استعمال بېله کوم تعویض څخه د یوې ټولنې د رسوائي سبب ګرځي خو دغه حال د هغه وخت وګړو ته ډېر ښه او ګټور ؤ . ځکه چې انسانان به د یو ځای نه د خوراکي موادو د قلت او لږتوب په وجه د نورو ځایونو ته پلټنه پسې خوځېدل او دا په اصل کې یو تحریک ؤ چې په نړۍ کې دا انسانانو د خپرېدو موجب وګرځېد او ټوله نړۍ په دوی که شوله .

موږ د لرغونیو انسانانو د ژوندانه په باره کوم ښکاره شواهد نلرو لېکن ځینې ابتدائي انساني ټولنې اوس هم په نړۍ کې شته چې تش په ښکار او یا خودرویه مېوو او نباتاتو ګذاره کوي او

دژوند دوّل اولاړی ئې وهغو ارغونیوو ګروته چې دېرش زره کاله ئې دمخه ژوند کاوه دېر ورته دی . ددوی له کتنې او مطالعې څخه د پخوانیو انسانانو د ژوندانه په باره کې څه معلومات په لاس راوستلای شو ، لومړنی انسانانو تقریباً په ګډه په دېرش کسیزو وړو وړو ټولنو کې ژوند کاوه او داهغه شمېر وګړی ؤ چې دوی ښکار ځای حمایه کولای شوای . هری ټولنې غالباً یومشر اولار ښوونکی درلود چې ددوی له ټولو څخه قوی ترټولو څخه ګڼل کېدی . په مجردی چې به دامشر له منځه ولاړ بل لایق او قوی سړی به دده پر ځای ودرېدی او د مشرتوب دنده به ئې په غاړه واخیستله غالباً په دوی کې قانون او حکومتی تشکیلات نه ؤ ، ځکه چې پداسې وړو او سره متحدو ګروپونو کې داسې شیانو ته ضرورت نه ؤ . موږ د ننني ابتدائی ټولنو له کتنې څخه داحدس وهلای شو چې ارغونیو وګړو ځانته عادات اودودونه درلودل چې پرهغو وګړو کوم چې به ئې دا قواعد ماتول او یا به ئې مخالفت ترې کاوه تطبیقېدل . یوازینی جزا چې بدي ټولنو کې دوګړو د برلار ساتلو لپاره استعمالېدله ټوکې او مسخرې وی .

داټولنې دېری وړی وې او هرچا یواو بل سره پېژندل او د یواو بل په باره کې ئې پوره معلوماتونه درلودل . چاچې به خپل ملګری او ګاوندي وغولاوه او یا به ئې ژیان ور ورساوه و بلې ټولنې ته نشو ای تښتېدلای او دهری خوا به لار پری تړلی وه . ځکه چې ګاوندیو ټولنو به دښمنی او اوبت ګړی وی او له دغه سببه هرسړی مجبور ؤ چې د خپلې ټولنې سره دخپل ځان د ساتنې لپه ګډه وهستېږی او دغلته دوګړو ټوکې ، مسخرې او رسوائی که څه هم سختې پرې تمامېږی وزغمی او وئې منی . اوس هم په ځینو ابتدائی ټولنو کې که کوم غړی بدکار وکړی ، وګړی پېلېږی چې که هغه جسمی او بدنی جزا ورکړی پری خاندی او مسخرې او ریشخند پری کوی . که څه هم دا کومه سخته جزا نده خو غلا او نور دېر بدکارونه پهٔدې ټولنو کې نشته . اما ښائی چې په دېرو بدو کارونو کې الکه د ښځې تښتول او نور دېر سخت انتقام واخلی .

پدي کې هیڅ شک نسته چې پدي دستهٔ نیز او داهٔ نیز ژوند کې کورنی او فامیلی ژوند هم ؤ او دا کورنۍ زموږ له اوسنی کورنیو نه دېر بېلوالی او توپیر نه درلود . مېړه او ښځې به دخپلو اولادونو سره په ګډه یو دېر نژدې داخلی ګروپ جوړ اوه که به ضعیف هم ؤ . یو وخت دا ګمان کېدی چې ابتدائی وګړو به په یو بې احتیاطه ګډه حالت ژوند کاوه . یو سړی به کله یوه ښځه وکړه او کله به ئې بله ښځه کوله . هیڅ دول کورنی به ئې نه تشکیلوله . خو دا لږ څه بې احتماله ښکاری ، ځکه چې په ننني دېرو ابتدائی وګړو کې هم دا طرز العمل نه لیدل کېږی او حتی او بې بیزوګانی هم خپل جفت انتخابوی او تر مرګه پوری ورسره اوسېږی . په حقیقت کې د کورنی جوړونه اود کور بنسټ د انسانانو فطری ضرورت دی په هر وخت او هر ځای کې چې اوسی .

موږ ننني وګړي منو چې غذائي او خوراکي مواد له کښتو څخه په لاس راولي لېکن دا به د نه منلو خبره راته وايي چې د حيواناتو او غلو د کرلو مخکوره پسله زرګونو کلونو څخه منځ ته راغلي ده . کرهڼه او په تېره بيا خيشاوه کول، رمبې کول، ريبل او نور ډېر سخت او مشکل کارونه دي .

تر کومه وخته پورې چې طبيعت وانسانانو ته پرېمانه خوراکي مواد برابرول، انسانانو و کرهڼې او ځانې ژوند ته کومه دلچسپي او علاقه نه درلوده لېکن کوم وخت چې ئې نفوس ډېر شو او خودرويه مېوې او ترکارۍ هر کال پېدا دي چې نوري ئې پرځای کښېنولی شي او يا وکرلی شي، نو لېدلي او تمامېدلي او کال په کال د خوراکي موادو قلت او لږ توب منځ ته راتی چې پوانځي او بوانځي ئې کرهڼه ځواب ور کولای شوه .

کرهڼه ښائي چې د خودرويه مېوو دونو له ساتلو نه شروع شوې وي. ممکن ځينو کورنيو په ځينو ځايونو کې د خودرويه مېوو ونې کورغ کړي او ساتلي وي چې هر کال به د مېوو تولونې پر وخت ور تللي او مېوې به ئې تري تولولي ! همدارنګه دوی به کشف کړي وي چې که چېري د دې ونو بېخونه او شاو- خوا مځکه ورېسته کړه شي ډېرې او ښې خوږې مېوې به حاصل ور کړي . اومړي کښتګران غالباً ښځې وې چې پدې ميړنه به ئې دونو په ابولو او روزولو اخته وې او ناريڼه به ئې ښکار کاوه . د پټو دانو د ښېلو فکر هم غالباً په اتفاقي کشف او هغه وخت منځ ته راغی چې د قبل التاريخ ښځو وليدل چې د خودرويه مېوو منډ کې به پرته لنده مځکه کې لوېدلي او راشني شوېدي او همدارنګه ځينې حبوبات ئې هم وليدل چې په لنده مځکه کې ځنې لوېدلي او او راشنه شوي وه .

د تر کار پراو سېز ښځاته برابرول د ښځو کار وه لېکن د غوښو برابرول د ناريڼه وه . حتی ئې هم په ابتدائي ترانو کې د کرهڼې اکثره کارونه لکه: رمبې خيشاوه د باغ او پالېز ساتنه ښځې کوی او ناريڼه ئې رمې بيايي، لښکر لوټي، او قصابي کوي .

انسانانو په آزادانه او مختار ډول سره د حيواناتو او غلو کرل په ځينو مختلفو سيمو کې شروع کړه چې پوله د غو آزادو زراعتي مرکزونو څخه د ايري ختيځ مرطوبه استوائي سيمه ده . د دې ځای ځنګو ځنګلونو د وښو وتخمونو نه ډشنه کېدو چانس نه ور کاوه . کېدای خوږې ېتانې او ځينې نوري مېوې لومړی پلا دلته اهلي شوېدي . کېلې او ځينو نورو مېوو پو وخت منډ کې او تخمونه درلودل چې پر مځکه لوېدلي او شني شوېدي خو د دې ونو ئې تخمونه او منډ کې له لاسه ور کړېدی .

بې منډ کو او بې تخمو مېوې چې خپل تخمونه ئې له لاسه ور کړېدی پوانځې او بوانځې د انسانانو په واسطه بيا ايښوول کېدای شي .

[باته په بله ګڼه کې]

ښاغلی محمد یوسف «ویران»



# گل

په بهار مېسر کېږي د بیا اسې گل — عجب څه زينت اري د کوهاي گل

چې باغ ان ئې زدې په لاس هغه لا پرېږده — پر هر ځای کې په خندا وي دوبالي گل

د قدرت د گل ښېښې کولای نه شي — بقا شان چې جېړي د مهالي گل

نور که گل کړي په ښه زيبا مانيه کې — زما تر هر ځای خونې دي خپل د کندهوالي گل

زما مزار به په سرو گلو انباني وي — ولي خونې مې دي ان دلته د لالي گل

او گلاب چې سې پيدا په کندهار کې — ويران څه کړي د کشمير و بنگالي گل

---

مې بوي، مطرب بوي، مستي بوي، نشه بوي
چوش بوي، خروش بوي، د مينې ترانه بوي

سقا د وصل جام نه انتظاريم انتظار ساقي
مړ شومه له تندې نشته ما لره قرار ساقي

پسه دې ښايسته فضا کې به زه تا نه په کتلو شم
رغړې به پر گلو زه به سقا په نخښولو شم
سقا د خواږ غنچې نه به اشنا په مهدولو شم
نه مې شي خوا خوږي، زه به سر سقا به سقايلو شم

سقا د وصل جام نه انتظاريم انتظار ساقي
مړ شومه له تندې نشته ما لره قرار ساقي

۱۳۴۰

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR A.M-KARZI

JANUARY-AND-FEBRUARY, 1962

GOVERNMENTAL PRESS